باسمه تعالی

# د حبيبي شعري کليات


شاعر: **علامه عبدالحی حبيبي**

ټولونه، سمون او ترتيب: **مطيع الله روهيال**

خپروونکی: **علامه رشاد خپرندويه ټولنه** - کندهار

کمپوز او ډيزاين: **روهيال کمپيوټر اداره** - کندهار

چاپ کال: ۱۳۹۳ش

چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه

د مخونو شمېر: ۳۲۸ مخه

د خپرونو لړ: ۸٤

چاپځای: ملالۍ مطبعه


---


تليفون: ۰۷۰۰۳۲٦۰۱۱

ايميل: mrohyal@yahoo.com


---

# د علامه حبيبي شعري كليات

نن (۱۵ / اپرېل / ۲۰۱۴ع) د ګران مطيع الله روهيال له خوا د علامه عبدالحي حبيبي د پښتو او دري اشعارو كليات د ايميل له لاري د كتلو له پاره كاناډا ته راورسېد. ګران روهيال د دغه كليات مواد د اتو، نهو كالو په جريان كي له بېلابېلو موقوتو او غيرموقوتو خپرووونو څخه راغونډ كړي دي. په دې موادو كي ځيني ئې پخوا د مستقلو رسالو په توګه چاپ سوي دي، خو ښايسته زياته برخه ئې هغه متفرق اشعار دي چي د تېرو څه دپاسه اتيا كالو په جريان كي په هيواد كي دننه او تر هيواد دباندي خپاره سوي ول. د دغو خورو ورو موادو موندل او راغونډول څه اسانه خبره نه ده او څېړونكي د دغه كار د دروندوالي بوج احساس كولای سي.

روهيال تر دې وړاندي هم د علامه حبيبي د ادبي، ژبنيو، تاريخي او نورو علمي څېړنو يوه لړۍ راپيل كړې وه چي هري برخي ته ئې د (شل مقالې) نوم وركړی دئ او ما ته د دې لړۍ لس برخي رارسېدلي دي. دغه راز ئې د اروابناد استاد بېنوا نثري ټوټې، د اوسني ليكوال ټول ټوكونه او د پښتانه شعراء ټول ټوكونه په يوه مجلد كي له نوو زياتوونو سره بې له كومي مادي تمي او امتيازه خپاره كړي دي. پر همت دې بركت وي. په نورو هيوادو كي دغه شان كارونه د اكاډميو او علمي مركزو له خوا په ګروپي ډول سر ته رسېږي.

د لويو استادانو د خپرو سوو مقالو او اشعارو راغونډول او سره يو ځای

کول له محققینو سره مرسته کوي چي د خپلو څېړنو پر وخت مجبور نه سي چي د یوې لیکني د موندلو له پاره د بېلابېلو کتابتونو د رواقونو او الماریو دوړي پر ځان ومني. زما یقین دئ چي که یو وخت د هیواد په پوهنتونو کي حبیبي پوهنه د یوه مضمون په توګه تدریس کېدله، د روهیال دغه خپاره سوي آثار به هم له استادانو او هم له محصلینو سره ښه پوره مرسته وکاندي. ده او نورو زلمیو ته زما سپارښتنه دا ده چي د دغه راز کلیاتو د ترتیبولو پر وخت دي له زیات دقت څخه کار واخلي چي نه ګانه د موادو اصلي بڼه د چاپي او طباعتي تېروتنو ښکار نه سي.

زه ګران روهیال ته د دغه کلیات د برابرولو او خپرولو له اسیته مبارکي وایم او له پاک خدایه ورته د نورو سترو علمي کارو د تر سره کولو توفیق غواړم.

محمدمعصوم هوتک

آشاوا –انټاریو – کاناډا

۱۵ /اپرېل / ۲۰۱۴ع

# د ټولوونکي له خوا

لوی استاد علامه حبیبي د خپلو تاریخي او تحقیقي لیکنو او څېړنو له اسیته ډېر مشهور دئ، ډېر لږ کسان به د هغوی له شعر ویلو څخه آګاه وي. د هغوی د شعر و شاعرۍ په باب ډېر څه نه دي ویل سوي، که ویل سوي هم وي فقط د یادونو حیثیت لري. استاد د پښتو او دري یو مقتدر شاعر دئ، چي د فرهنګي فعالیتونو له پیله ئې شاعري هم پیل سوې او د ژوند تر پایه ئې دغه لاره پاللې ده. د استاد یوه پښتو شعري ټولګه او پنځه دري مثنویات په مستقل ډول چاپ سوي دي، د دې تر څنګ ئې په متفرق ډول خورا ډېر شعرونه د هیواد او تر هیواد دباندي په بېلابېلو موقوتو او غیرموقوتو خپرونو کي خپاره سویدي، چي ما ئې تر خپله وسه د راټولولو کوښښ کړی دئ.

د استاد پښتو شعري مجموعه (ملي پسرلی) نومېږي چي په ۱۳۱۸ش کال له کندهاره د طلوع افغان اداري خپره کړه. (پیغام شهید) د استاد لومړی دري مثنوي دئ، چي په ۱۳۱۷ش[۱] کال په کابل کي خپور سو، ورپسې ئې د غزني، سلطان محمود او ابن سینا په باب یو بل مثنوي ووایه او د (قطرات سرشک در بارګاه محمود و سنائی یا برخرابه زار شهرستان تاریخی غزنی)[۲] په نامه ئې د (۱۳۱۵) په کابل مجله کي خپور کړ. تر دې وروسته ئې دوه نور مثنویات د (درد دل) او (پیام عصر) په نومومو په (۲۶ - ۱۳۳۰) کلونو کي ویلي او په (۱۳۷۹ش) له پېښوره خپاره کړي دي. د استاد وروستی مثنوي (خلیلي نامه)[۳] نومېږي چي د پردېسۍ په شپو و ورځو کي

---

[۱] په "آفریده های مهجور علامه حبیبی" کي د دې مجموعې د چاپ کال ۱۳۱٤ش دئ.

[۲] په افغاني مطبوعاتو کي دغه مثنوي د (غزنه) په نوم مشهوره ده.

[۳] "خلیلي نامه" په دې کلیات کي نه ده راغلې.

ئې له پېښوره خپور کړ.

د استاد پښتو متفرقات په طلوع افغان، کابل مجله، آريانا مجله، کندهار مجله او لار مجله کي خپاره سوي دي، دري متفرقات ئې په آزاد افغانستان، کابل مجله او ژوندون مجله کي خپاره سوي دي.

له يوې خوا که د پښتو لومړی آزاد شعر استاد ته منسوب دئ، له بلي خوا ئې په شعر کي د کلاسيکي شاعرۍ تر څنګ د نوي شاعرۍ څرکونه هم ليدل کېږي. د پاړسي شعر ډېره برخه ئې د مثنوي په فورم کي ويلې خو د غزل رنګيني ئې هم نه ده هېره کړه. پښتو شاعري ئې مثنوي، غزل، قطعه، رباعي، قصيده او نور فورمونه هم لري. څنګه چي د استاد د تحقيقاتو او څېړنو په باب دا خبره مشهوره ده چي له پيله تر پايه د مقصد پر خبرو راګرځي، زوايد او اضافات ځای نه پکښې لري، شاعري ئې هم دغه ډول مقصدي او د خپل هدف د توضيح او تشريح له پاره ده. الفاظ ئې ښکلي او ساده دي، مفهوم او هدف ئې لوړ او عالي دئ. ترکيبونه ئې روان او له ابهامه خالي دي، له پېچلو او نامانوسو کلماتو څخه ځان ساتي. د استاد په شعر کي د خپل محيط او خپلو خلکو ناخوالي انعکاس سوي دي، د خپلو خلکو دردونه د ځان بولي او د هغوی په غمونو ځان شريک بولي، د پيرمحمد کاکړ دغه بيت:

بېلتانه په غم شريک کړم د غمجنو
د هـــر چـــا پر غـــاړه ژاړم له نی

د استاد په ټوله شاعري کي ځان ښکاره کوي، استاد چي څه ويلي او ليکلي دي، ټول ئې د خپل وطن، خلکو او ژبي په باب ويلي او ليکلي دي. د دوی دردونه او مصيبتونه ئې په شعر او ليکنه کي منعکس دي، او د خپلو خلکو او خپل محيط غمونه او رنځونه ئې ژړوي. استاد خپل ټول ژوند تر خپلو خلکو او وطن قربان کړ. په دغه قربانۍ کي ئې له خپل محبوب وطن څخه لس کلن تبعيد هم وګاله، چي د وخت د حکامو له خوا د وطن دوستۍ

او خپلو خلکو د واقعي استازي په تور له وطنه ليري سو او لس کاله ئې د خپل وطن او خلکو په جدايي کي د غم او ناورين شپې و ورځي تېري کړې.

استاد د يوه لوی انسان په توګه د افغان او افغانيت نامه ته کار کړی دئ، او د دغه نامه د روښانه کولو او ځلولو له پاره ئې خواری و زحمتونه ګاللي دي. استاد د دې وطن د ټولو هستوګنو له پاره يو لوی او آباد وطن غوښت، دغه آبادي ئې د دې وطن د خلکو په يووالي او اتحاد کي ليدله. د دې وطن ګډه ارزښتونه ئې د ټولو وطنوالو بلل او د هغوی د ساتلو او پاللو له پاره ئې د ټولو ګډ کار غوښت.

استاد که له يوې خوا په شاعري کي د اسلافو پر قدم قدم ايښی دئ، له بلي خوا د پښتو په معاصره شاعري کي هم د پام وړ ځای لري. د استاد په شاعري کي داسي غزلونه هم ليدل کېږي، چي د موضوع او مفهوم له مخي نوی والی لري، د استاد لاندي غزله په څو څو واره لوستلو ارزي:

## د شعر هنګامه

چي زاهد په ميو لړ شونډه لنده کړه
په تيندکو کي ئې جوړه عربده کړه
تنده نه سوله په ماته د رندانو
په ايندو، ايندو ئې تشه ميکده کړه
ساقي نه وو هسي مست او غرق په ميو
دا رندي او مې نوشي ئې له ما زده کړه
خلک وايي د پردې تر شا اسرار دي
څه خو نه وه چي ئې پورته دا پرده کړه
سيل د اوښو ئې له سترګو را ايله سو
شرمنده ئې هم آمو هم نربده کړه

## پس له ډېره مې دا ښکلي شعر ووې
## هنګامه د ساړه شعر مې توده کړه

ځيني کسان داسي فکر کوي چي دا به د استاد له وروستيو شعرونو څخه وي، خو په دې کليات کي به تاسي داسي غزلي ووينی چي تر دغه غزلي وروسته ويل سوي دي، معنی دا چي استاد د ژوند تر پايه د شاعرۍ لمنه نه ده ايله کړې، خو د شاعرۍ پر ځای ئې تحقيقاتو او څېړنو ته زيات وخت ورکړی وو، همدغه علت دئ، چي د دوی پر شاعري باندي ډېري خبري نه دي سوي.

د دغه کليات په ترتيبولو او راټولولو کي ما تر ډېره دا کوښښ کړی دئ، چي د استاد ټول تخليقات را يوځای کړم، خو بنده تر خپله وسه پړ دئ. زما د ډېرو کوښښونو سره سره بيا هم په دې و نه توانېدم چي د استاد ټوله شاعري سره رايوځای کړم، دا ځکه چي ځينو هغو اخبارونو او مجلو ته مي د اوس له پاره لاس نه رسېدی، چي د استاد شعرونه پکښي خپاره سوي دي.

د دې کليات شعرونه د هغوی د چاپ پر اساس ترتيب سوي دي. په پای کي زه د پوهاند حبيبي له زوی ډاکټر خوشحال حبيبي څخه مننه کوم چي ما ته ئې د استاد ځيني شعرونه راواستول، تر څو د دغه کليات په تکميل کي استفاده ځني وکم او د دې تر څنګ د ښاغلي استاد محمدمعصوم هوتک او ښاغلي محمدهارون خپل شعشعي د مشورو او لارښوونو هم پوروړی يم، دواړو ته اوږد او صحتمن ژوند غواړم.

مينه او ادب

مطيع الله روهيال

نوی ښار – کندهار

۱۷ تله ۱۳۹۳ش

# فهرست

## ملي پسرلی

## پښتو متفرقات

## پيغام شهيد

## غزنه



## درد دل

## پیام عصر

## متفرقات پارسی

# پسرلی سو

پسرلی پر "پښتونخوا" سو    غوړېدلي دي گلونه
غوټۍ هري خوا ته خاندي    او مسا وهي موجونه
د غاټوی رېدي دوران دئ    شا وخوا عجب رنگونه
د پسرلي نسيم چلېږي    غوړوي مړاوي باغونه

د پسرلي وږمې الوزي، پر هر لوري "پښتونخوا" كي
ځلمي، جوني گل پر سر ږدي ناڅي گرزي په صحرا كي

د بلبلو پر باغونو    الوتني چوڼهار دئ
هري خوا و ته چي گورم    د گلو تود بازار دئ
غرا و سمه زرغونېږي    څه عجب ښكلی بهار دئ
بورا تل پر گل كرېږي    زما د او ښكو جويبار دئ

با كه څاڅكي د شبنم دي، او بوي مړاوي گلونه
خندوي صحرا د ښتونه، رنگوي تش ډگرونه

راسه وگوره دنيا ته    رنگ په رنگه ننداري دي
يوې خوا ته اتڼونه    پر بل كور ناري سوري دي
په كټكي كه زركي خاندي    د بلبلو ستر گي سرې دي

په خندا ده ژړا ګډه دلته څه نوي پېږي دي
دلته ږوږ دئ د ژړا وو، دلبا خته بلبل کړېږي
کله دلته کله هلته، د بسمل په دود تپېږي
لمر را وخوت په ګلشن کي هره خوا زرافشاني کړي
د دې لويو غرو لمني په روڼا خپل نوراني کړي
د پښتون په غره بېديا کي د قدرت لاس نقاشي کړي
شين تغرئې غوړولی پر هر لوري ګل پاشي کړي
دلته رنګ دئ دلته خوند دئ، دلته حظ دلته فرحت
هلته جوړي ننداري دي، سترګي غواړي د عبرت
د ځوانۍ موسم بهار دئ نن شباب د ګلشن راغی
وچ ډګر د ګلو ډک سو پسرلی پر چمن راغی
څه تازه ښکلې بېديا ده ګل افشانه دمن راغی
د بهار نشاط دئ ګوره ښه موسم پر وطن راغی
د بورا پر ګلو ښور دئ، د بلبلو شخول چمن کي
مينان دي لاس تر غاړه، سره ګلونه په لمن کي

# زه او پسرلی

ارغندا او د رود پر غاړه په لمن د لويو غرونو
په ساړه سيوري کي ناست يم د پسرلي په ښو خوندونو

زړه مې الوزي خوښي کا        د پښتون په شنو رغونو
د دې غرو پر ککريو        په فضا دئ په ټوپونو

خپل وطن دئ خپل مي کور دئ، خپل مي غر دئ خپل مي باغ
د بلبل په څېر پر ګرزم، خپل چمن دئ خپل مي راغ

د خوښۍ پيام راوړينه        د پسرلي نسيم چلېږي
زيړی لمر پر دغو غرونو        په څه ناز ادا ځلېږي
د فطرت د لاس انځور[1] دئ        په کمال نقاشي کېږي
په ليدو ئې زړه سور نه سي        نه مي سترګي په مړېږي

دلته حسن آب و تاب دئ، ښکلی مخ د مځکي برېښي
ټول ښايست دئ رنګ و بو دئ، بورا شونډې د ګل ځېښي

د نسيم لاس د غوټيو        له ښه مخه نقاب اخلي
هره ونه زرغونېږي        له پسرلي نه شباب اخلي
مشاطه د قدرت ګوره        تري دنيا آب و تاب اخلي
د پسرلي سندري لولي        هر سړی چي رباب اخلي

په نغمو په جوش کي ياره، دلته اوري حسن و رنګ
د زړه ږغ له سينې کاږم، په تا اورمه دا ترنګ

## زما ږغ او د خوشحال خان ياد

د زړه ږغ دئ د زړه سوي دئ        يو څو اوښکي سرې او سپيني

---

[1] انځور: نقش، رسم.

بـل څـه نـه دي اې پـښتونه! چـــي تـــويېږي پـــر لمنـــي
اې پـــښتون مړو چـــه قامـــه درتـــه گـــډ يمـــه لـــه مينـــي
ملـي ژونـد دي نوبهـار سـه خـداى دي وسـاته لـه منـي

زه بـه تـا تـه ولولـمـه د خوشـحال ختـهـک سـندره
جـان افـروزه ده دلـسوزه، د پـښتون بابـا خبـره

"راشـــه وغــــړوه ســــترگي د جهـــان ننـــداره گـــوره
چي ښايست لري په ستوريو د اســـمان ننـــداره گـــوره
د دې خپـل وجـود پـه بـاغ کـي پـه هـر شـان ننـداره گـوره
چـي هـر گـل وتـه نظـر کـړې د بـاغوان ننـداره گـوره[1]"

سترگي وپرانـزه پـښتونه! ييـا نـو گـوره شـاوخوا تـه
د خوشحال پيغام کـه غـوږ تـه، غـور وکـړه دې وينـا تـه

د زړو تــاروتو ترنـــگ دئ رســوم ئــې تــا تــه نــوى
دا د هغـــه ســـړي ږغ دئ چــي پــه اور د مينــي ســوى
د پــښتون پــر ننگــه مــړ دئ ژونـد ئـې دا شـاني تېـر سـوى
د خوشـحال بابـا پيغـام دئ هغـه پـلار کـه څـه دى نـه وى

نو بـه اوس ويجـاړ لـه تـا واى، د پـښتون د "مليت" کـور
نـه بـې ژبـه نـه ادب واى، نـه سـاتلى پـه غيـرت کـور

دې بهــار کــي مــي ناڅاپــه د پـښتون بهـار پـه يـاد سـو
هغـــه دور مـــخ تـــه راغـــى چي پښتون په پښتو ښاد سو

---

[1] دا اته مسرۍ د خوشحال خان خټک دي.

وو شباب د پښتونوالي      د پښتون کور په آباد سو
پښتنو وطن ساتلی      ځان او تن بې پر برباد سو

وو بهار د پښتونوالي، د حمید[۱]، فرید[۲] دوران
یا محمود[۳] زموږ په مېړانه، بری موند پر هندوستان

د خوشحال ختهک په توره      "پښتونخوا" به ځلېدله
په دې غرونو کې هر کله      د ده توره برېښېدله
د مغولو غلامي وه      پښتنو نه قبلوله
د "اورنگ[۴]" غلیم خوشحال وو      خپله مېني تري ساتله

په مېړانه ئې ژوندون وو، سر ئې ایښی پر وطن وو
دغه خاوره ئې ساتله، له غلیمه غیرتمن وو

د پښتون بهار له تا وو      اې مېړه نره سرداره!
تا پښتو ده ژوندۍ کړې      له ختهک تر کندهاره!
پښتانه دې یادوینه      ننګیالی ښاغلې پلاره!
چې پر مرګ دې هېره نه وه      د پښتو د ننګې لاره!

"تا ول پسله مرګه هلته، تاسي ښخ کئ مړ خوشحال
د مغولو د پښو ګرز ئې چیري نه کې بیا پایمال[۵]"

نه یې مړ ته خو ژوندۍ یې      اې ادیبه ننګیالیه!

---

[۱] شیخ حمید لودین پښتون د هند پاچا. [۲] فریدخان د شېرشاه سوري پښتون مشهور شهنشاه نوم دئ. [۳] سلطان محمود زابلی. [٤] اورنګزېب عالمګیر د هند مغولي پاچا چل تل ئې د پښتنو سره جنګونه کوله. [٥] دا د خوشحال خان آخرنی وصیت وو: "ما هلته ښخ کئ، چي د مغولو د سپرو د پښو ګرزونه زما پر قبر و نه لوېږي".

دا ښه نوم دي دايمي دئ — په ابد ژوندون ژونديه!
ته زموږ ملي پېشوا يې — د "پښتو پلار" توريالیه!
پښتونواله دي ژوندۍ كړه — د پښتو لوی بريالیه
تا و موږ ته وښووله، د پښتو دا سمه لاره
ستا په توره به نازېږو، د پښتو پښتونه پلاره

د پښتون بېړۍ چپه وه — د غزني[1] دوران وو تللی
د غوري[2] لويي وه ورکه — د سوري[3] قام وو تتلی
د لودين[4] جنډۍ نسکوره — قطب الدين[5] په زړه داغلی
د مغولو طالع لوړ وو — د اورنګ توغ رپېدلی
يو څو ستا د سوز ناري وې، چې پښتون ئې راولاړ کی
که نه ژر وو چې خپل کور بې، د مغل په لاس ويجاړ کی

د ادب ماڼۍ دي لوړه — د پښتو پر لوړ آسمان کړه
بيا اشرف[6]، شيدا، قادر دي — د ښايست ورنقاشان کړه
ته باني د دې بنا يې — پښتانه دي اديبان کړه
تا په ښو نغمو، بدلو — د ځلمو زړونه روښانه کړه

---

[1] د غزني د عظمت او مدنيت دوره.

[2] د غوري پاچهانوي شهنشاهي.

[3] شېرشاه سوري د هند پښتون شهنشاه.

[4] د هند پښتانه لودينان پاچهان.

[5] سلطان قطب الدين ايبک د هند پښتون شهنشاه. [6] اشرف خان هجري او عبدالقادر خان د خوشحال خان زامن او کاظم خان شيدا ئې نمسی وو چې درې سره د پښتو نامور شاعران دي.

ته استاد يې شاګردان دي، که رحمان[۱]، حميد که ګل
ته يې پلار دا نور زامن دي، پيرمحمد[۲] که شمس که بل

د خټک له اکوړې[۳] نه    تا بيرغ د پښتو لوړ کی
په پښتو او پښتونواله    دي مغل ميرڅمن[۴] پرړ کی
د اورنګ پر کور دي وير کی    د مغلو شان دي ځوړ کی
د پښتون چې څوک غليم وو    په ميړانه به دي مړ کی
ته حامي د مليت وې، د پښتون د غرو زمريه
اکوړخېل په تا نازېږي، اې پښتونه برياليه
د خټکو افتخاره    اې ملي نامتو شاعره
فردوسي د پښتنو يې    ستا قلم توره ظاهره
شکسپير[۵] يې که ګوئټې[٦] يې    تر هغو لوړ يې په توره
د قلم فيض دي جاری دئ    بريښ د توري دي ظاهره
د پښتون په لويو غرو کي، ستا قلم توره روڼا کي
څو پښتون ژوندی وي تل به، احترام ستا په رشتيا کي
ته بيده يې ستا له قبره    د ارمان ناري راخېژي
د پښتون قوم په زړه کي    ستا د لاري تګ ټينګېږي

---

[۱] رحمان بابا او حميد بابا مهمندان او ګل محمد د مالګير د هلمند د قندهار شاعر.
[۲] پيرمحمد او شمس الدين کاکړ د کندهار د پښتو شاعران او د دېوانو خاوندان.
[۳] اکوړه د خوشحال خان خټک د ځای نوم دئ، او اکوړخېل ئې د خټکو په لوی قوم کي قبيله ده.
[٤] يعني غليم او دښمن [٥] د انګلستان مشهور شاعر. [٦] د جرمني مشهور شاعر.

په پښتو او پښتونواله        نن ورځ ستا پیروي کېږي
دغه ستا میراث دئ پلاره        چې پښتون ته پاته کېږي

ستا د ږغ ازانګې ګرزي، لا ترا اوسه پښتونخوا کې
نه یې مړ ښاغلې پلاره! څو پښتون وي په دنیا کې

ستا د توري شرنګ ترا اوسه        زموږ غوږ کې دئ خوشحاله
ستا د توري خړې ئې وخوړ        مغول ورک غلیم پایماله
میرویس[1] ستا پر لاره تللی        چې ئې مېنه کړه سنباله
د احمد[2] اکبر[3] پېش روه        په پښتو او پښتونواله

د وطن د مینې درس وو، تا ورکړی پښتنو ته
ته که ولاړې ستا وینا ده، مرغلري زموږ غوږو ته

د وطن مینې بندي کړې        په دهلي په رنتهبور[4] کې
ستا د توري ږغږغه وه        په دکن او په لاهور کې
د وطن پروانه ته وې        خود به سوځېدې په اور کې
چې پر مېنه خطر راسي        پښتون نه کښېني په کور کې

ځکه تل به تا وهلې، د وطن په لار کې توري
یا دي کړلې پښتنو ته، د وطن د حب خبري

ستا نغمه وه څه دلسوزه        څه توده له خونده ډکه
د غوري، سوري افکاروه        خپروله دي پر مځکه

---

(۱) حاجي میرویس خان هوتک د پښتون مشهور منجي. (۲) احمدشاه بابا. (۳)غازي وزیر اکبر خان. (٤)په دغو ځایو کي په کلو کلو خوشحال خان د مغولو په لاس بندي او له وطنه لیري وو.

د خپل دور افلاطون وې　　　تا مني هر سړی ځکه
کندهار تر ننګرهاره　　　له مهمندو تر خټکه

پښتنو ته تا ورکړی، په ښه شان درس حیات دئ
ستا میراث و دوی ته عزم، ننګه توره او ثبات دئ

فلسفه ده که حکمت دئ　　　که ادب که شاعري ده
دغه ټوله ستا په برخه　　　علاوه دي سرداري ده
د پښتون فخته[1] خو ته یې　　　ستا وینا بهادري ده
د ادب ګېڼه دي توره　　　چې ئې تل ګټه جاري ده

که هومر[2] که فردوسي دئ او که قیس[3] دئ که شیلر[4]
ستا مقام ته کله رسي؟ ته جامع وې د هنر

د پښتون پوخ فیلسوفه　　　ستا صحیحه فلسفه ده
د ایشیا د منځ ډاروینه[5]　　　ستا پخه نظریه ده
د حیات خښته دي ټینګه　　　پر بازو او پر قوه ده
"اعتدال" دي غوره کړی[6]　　　ستا د فکر دا پایه ده

پښتانه ستا په وینا کي، د حیات درسونه لولي
ستا په بڼغ کي حرکت وو، "حرکت د ژوندون[7] ولي"

---

[1] د المان ننګیالی فیلسوف چي د وطن د ساتني له پاره د ناپلیون سره جنګېدی. [2]د یونان پخوانی شاعر. [3]د عربو د جاهلیت مشهور شاعر امروالقیس. [4]د المان مشهور شاعر. [5]ډاروین د انګلستان مشهور فیلسوف او د نشو و ارتقاء د نظریې خاوند چي تنازع للحیات ئې اساس ګڼي. [6]د خوشحال خان د کلیات مقدمه وګورئ، د کندهار طبع. [7]د نوي مدنیت د فلسفې اساس دئ، چي ژوندون عبارت له حرکته دئ، او ټوله ښېګڼې پر حرکت بنا دي.

فلسفي مسلک دي غوره  ستا تحقيق خورا صحيح دئ
د نيتشه[۱] قنوط په منځ کي  ستا رفتار واضح صريح دئ
ستا په فکر کي سرداره  د پښتون کمال واضح دئ
د دې غرو نابغه ته يې  ستا قلم پکښي لائح دئ

د ژوندون فلسفه تا وه ښه روزلې اعتدال کي
موږ ته درس د حيات لولې، د شلم قرن جنجال کي

زمانه ده بدله سوې  شلم قرن څه بېباک دئ
د ضعيف غوښي قوي خوري  چي غښتلی دئ سفاک دئ
تمدن په وينو سور دئ  د هغه چا چي بې واک دئ
د شلمي پېړۍ دود دئ  چي ضعيف باندي تاړاک دئ

په دې عصر دې جنجال کي، ستا سبق موږ ته کافي دئ
ستا دتوري توری پاته[۲]، زموږ له هر رنځه شافي دئ

د پښتون صلاح الدينه[۳]  د خپل عصر ذوالفقاره[۴]
د ختک د غرو سيداله[۵]  د محمود[٦] غوندي نامداره

[۱] د قنوطي فلسفې مشر په اروپا کي شوپنهاور دئ، چي په مقابل کي ئې کانټ او نيتشه دوه تنه فلاسفه د اميد او اثبات د فلسفې پر خوا دي. [۲]خوشحال خان وايي:

لا په خوب کي په لړزه پرېوزي له کټه – چي د چا تر غوږ دما د توري شرنګ شي

[۳] سلطان صلاح الدين ايوبي د صليب د جنګو زمری. [٤] ذوالفقار خان ابدالي د احمدشاه بابا ورور چي د هرات لوی وطني مدافع وو. د نادرشاه افشار په مخ کي. [٥]سيدال خان ناصر د هوتکو لوی سپه سالار چي د ايران ټوله جنګونه د ده په مشرتوب سوي او تر مرګه د غليم سره په مېړانه جنګېدی. [٦]شاه محمود هوتک د اېران فاتح.

د اشرف[1] لوړه استاده     "د پښتو ښاغلې پلاره"
پښتون ستا په نوم نازېږي     اکوړې تر کندهاره

د پښتون ځلمي به تل تا، یادوینه څو پښتون وي
تل تر تله نه هېرېږې، احترام دي روز افزون وي

د پښتون د ځلمو زړونه     تل معموره ستا په یاد وي
ستا په یاد به ځلمي ویاړي[2]     څو پر دې جهان آزاد وي
زموږ په زړونو کي جګ ځلي     په یادګار ستاسي آباد وي
پښتانه خو ټوله یو دي     نوم چي ستا اخلینه ښاد وي

څه عجب چي ستا پر قبر، یو وخت دوی سره راټول سي
د پښتو تر بیرغ لاندي سره یو کوراو کهول سي

سر راپورته که سرداره     شلم قرن تماشې دي
شاوخوا پر ګردې مځکه     د "ملت، نېشن" نارې دي
ذرې وصل دي و لمر ته     څه عجیبې ننداري دي
ستا د بږغ هم کښته پورته     په دې غرو کي بږغږغې دي

ستا خو بږع و پښتنو ته، د پښتون نجیب ملت ته
"قبائل ورک کئ له منځه، ځان کړئ وصل ملیت ته"

---

(۱) شاه اشرف هوتک چي تر مرګه د غلیم سره وجنګېدی.

(۲) یعني فخر کوي.

# د پښتون د ژوند پسرلی

## ملي وحدت

د پښتون حيات خو دا دئ    چې ستا لاره کې ځرګنده
سره يو سئ ټوله وروڼه    له آمو څخه تر هنده
د پښتو جنډه ی کړئ هسکه    تر هراته تر هلمنده
د خوږو وروڼو په څېر سئ    برخن سئ د ژوند له خونده
بيا نو ستا پر قبر ټول سي، ملي جشن سي اختر سي
د بېلتون دوره سي تېره، لاس تر غاړه يو ټبر سي

## زوړ عظمت

زه له وروره سره کښېنم    لاس تر غاړه ئې خواله کړم
بيا نو ورانـدي و دنيا ته    د لوړتيا زړه نقشه کړم
د شېرشاه قدر سي نوی    چې رايـاده بنګاله کړم
د ايشيا په منځ کي بلوار    د احمد[1] په دود ناره کړم
د غوري داستان سي نوی، د غزني دوران سي نوی
مړې ايرې مي بيرته اور سي، زما ځراغ روښان سي نوی

## علم، مليت

د خوشحال په دود په علم    د غليم سترګي ړندې کو

[1] احمدشاه بابا.

د پـــښتون پـــه نامـــه بـــل وار        مـوړ د سـوز نـارې سورې کـو
سـره تـول سـو یـو لـه بلـه        بیـا د زړو قـصې خپـرې کـو
زوړ مـشال مو بیا روښـان کـو        ورتـه جـوړې ننـدارې کـو
د پـــښتو قـــصر ودان کـــړو، ملیـــت کـــړو راڅرګنـــد
بیا پر ښور راسي دا غرونه، ګرز ئې خپور پر بحر هند

## زاړه مزایا

پـــښتانه ولاړ ســـي ځـــان لـــه        هغـه زوړ عظمـت پیـدا کـي
د شـــهاب[1] مېړانـــه راوړي        د سـوري همـت پیـدا کـي
د احمـد پـه څېـر راپـاڅي        د میرویس غیـرت پیـدا کـي
بیـا پـه خپلـو بـدنو کـي        د ژونـدون قـوت پیـدا کـي
لـه دې خـاورو وپـاڅېږي، د ژونـدون اثـر یـو ځلـي
هر سړی خوشحال پښتون سي کړي ښکاره هنر یو ځلي

## اتفاق

لاس پـه لاس غـاړه پـه غـاړه        پـــښتانه ســـي لـــه یـــو واره
یو ئې کور یو ئې کهول سي        لـــه نفاقـــه ســـي بېـــزاره

---

[1] سلطان شهاب الدين غوري د پښتون لوی فاتح.

هر پښتون د فن خاوند سي　　په دنیا کي بیا نامداره
په هر ځای کي وباله سي　　یو ځلمی قوم بیداره
د ژوندون احساس بیا مومي یو ځلمی ملت پیدا سي
له سیالانو سره سم سي، مخ پر لوړه اعتلا سي

## ملي پسرلی

مړاوی باغ د ملیت مو　　شگفته نوی پسرلی سي
دغه مړ قوم له خوبه　　له غفلته راژوندی سي
هر پښتون په فکر روڼ سي　　د ملت محب ځلمی سي
د اسلافو نوم ژوندی کي　　هر سړی مو گړندی سي
د ملي حیات بهار دئ، ځني جوړ ښکلی گلزار وي
هر پښتون و خپل ته گل سي، د غلیم سترگو ته خار وي

## ځلمی ملت

لویو غرو د پښتونخوا کي　　بیا څراغ د علم بل کړي
په تیارو او تورو شپو کي　　ځان ته روڼ دغه مشعل کړي
کور او مېنه کي روښانه　　ټول وطن په جل و بل کړي
خپلي ټولي ماتي گوډي　　د جاپان په څېر سنبل کړي
و دنیا ته کړي ورڅرمه، د ځلمي ملت متاع
بیا نو وځلوي هر ځای د پښتون د لمر شعاع

## ملي محبت

په هر لوري پښتو خوا كي — تل د وروڼو يارانه وي
يو ملي نشاط شغف وي — د سروري يو هنگامه وي
په هر ځای كي چي اوسېږي — پښتانه په يوه خوله وي
په نعمت په ښادو ښاد وي — مينه تل سره توده وي
زه جارېږمه له تا نه، ته له ما سره خوږ ورور يې
پر يوه لوري مو يون وي، زه يم ستا ته زما د كور يې

## يووالی

يو خيال وي يو مو يون وي — يو مو فكر، يو مو كار
يو مو نوم يو مو نښان وي — يو تعليم، يو مو كردار
يو تنظيم، يو اتفاق وي — يو تهذيب، يو مو شعار
يوه ژبه يو ادب وي — يو صفت، يو افتخار
هوغه، هغه، دغه، دلته ټوله يو پښتون ملت
زه جارېږم، له هغو نه، هغوی كړي زما حرمت

## نوی پښتون

د وطن پر ښكلي مځكه — ځلمي گرزي نڅا كاندي
نوی نسل د پښتون وي — مخ پر لوړه وروسته وړاندي
د وطن عشق ئې سبق وي — دا ئې درس وي، وايي خاندي:
"خپل وطن او خپل مي كور دئ — سر ايږدمه پر دې باندي

دا ځما وطن مدفن دئ، له نیکونو دئ راپاته
زه ئې تل ساتم په وینو، دا د لوی بابا میراته[1]"

## ویښتوب

د پښتون کړدې ودانه          سي تر قصر د شاهانو
د نشاط بزم ئې جوړ وي          مین وصل له خوبانو
د خوښۍ وریځې ګرزي          پرې خنداوي د ګلانو
د راحت پسرلی تل وي          د وطن پر مینانو
د ویښتوب جرګې سي جوړې، د ملت لوړ طمطراق سي
د ملي لوړتیا دپاره جوړ د ټولو اتفاق سي

## ورورګلوي

سترګې دې کې وي له میني          زړونه جوش د اخوت خوري
چې غلیم ئې حال ته ګوري          د زړه ویني په زحمت خوري
زموږ جنډې په پښتونخوا کې          تل رپرپ د عظمت خوري
د سوري په څېر له موږه          نور مېوې د نظم رفعت خوري
یو وار بیا دنیا ته بل وار، د دماغ قوت ښکاره کړو
د قلم توري له فیضه، پر دنیا د ښو ناره کړو
بیا به کښېنو او په عدل          پر دنیا به وزر خپور کو
تمدن او نظم دواړه          ورسوغات، ودان بې کور کو

---

[1] میرات زوړ مفغن او صحیح دئ.

د یوو والي ږغ به وکو     هر سړی به د ځان وروور کو
بده وضعه بد نیت به     و مېړونو ته پېغور کو
هر مظلوم به په خپل سیوري، د خپل وروور په څېر آرام کو
مساوات کي به ژوندون کړو، یو د بل به احترام کو

## د زړو آثارو ژوند

غزني بیا دارالعلوم سي     تو د علم زوړ کانون کړو
په "فاضل تمدن" بل وار     رشتیا خیال د فلاطون[(۱)] کړو
بیا به بل بوعلي پاخي     بلخ به جګ په ښه قانون[(۲)] کړو

بست[(۳)] به بیا په علم لوړ کو     فیروزکوه[(۴)] به نوی روڼ کړو
د ایبک[(۵)] په څېر به ځونه، سر به هسک په افتخار کړو
د صالح تمدن نخښي، پر هر ځای به جګ منار کړو
اشارات[(٦)] به وکړو نوي     عروضي[(۷)] به بیا پالونه

---

[(۱)] مطلب هغه مدنیت فاضله دئ چي افلاطون ئې د جمهوریت په کتاب کي خیالي نقشه کښلې ده. [(۲)] بوعلي سینا او د ده مشهور کتاب (قانون). [(۳)] بست ډېر عمر د مدنیت مرکز وو. [(٤)] د غور په غرو کي د غوري شاهنشاهانو پایتخت. [(۵)] قطب الدین ایبک د هندوستان پښتون فاتح چي په دهلي کي ئې یو جګ منار جوړ کړی او تر اوسه په (قطب منار) مشهور او د فن یوه ښکاره نمونه ده. [(٦)] د بوعلي سینا یو کتاب دئ. [(۷)] احمد بن عمر نظامي عروضي د سمرقند وو، د بامیان د غوري پاچا په حضور کي ئې چهارمقاله ولیکله (۵۰۰هـ) چي نوم ئې شهزاده ابوالحسن حسام الدین علي د فخرالدین مسعود زوی د عزالدین حسین زوی وو.

سنايي[۱] جامي[۲] به پاخي  البستي[۳] به ژوندی کونه
مېمندي[۴] به قلم واخلي  بيهقي[۵] به کړي ليکونه
بيا به بل خوشحال پيدا سي  لوړ د علم بيرغونه
د غزني په څېر مجمع به، د پوهانو ننگرهار سي
ها د غور زړې نغمې به، بيرته سُر پر قندهار سي

## ننگياليو پلرو ته ږغ

ابو الفتحه! سر که پورته  ميوندي قلم راواخله!
اې محموده! راولاړ سه  د بري علم راواخله!
احمدشاه! سترگي که روښې  ذوالفقار[٦] دي سم راواخله
ميرويس خانه زموږ و خواته  په الطاف قدم راواخله
مگر ستاسي روح په موږ کي د ژوندون احساس پيدا کي
بيا د علم جنډی لوړي، پښتون قام نشو و نما کي
اې شېرشاهه يو وار گوره  له سهسرامه[۷] و دې خواته
اې خوشحاله نظر وکړه  پښتون پروت دئ خوا او شاته
د مهمندو نام آورو  چي مو علم کی رازياته

---

[۱]خواجه سنائي غزنوي مشهور مؤلف او شاعر. [۲]مولانا عبدالرحمن جامي د هرات مشهور مؤلف. [۳]ابوالفتح بستي د غزنوي عصر مشهور اديب او ليکونکی عالم. [٤]ميمندي، د ميوند مشهور او معروف د غزني کورنۍ وزيران او ادباء. [٥]ابوالفضل بيهقي د غزنوي عصر مشهور مؤرخ چي تاريخ بيهقي ئې ليکلی او د سلطان مسعود د دربار منشي وو. [٦]د احمدشاه بابا د سکې نښان وړی او دوه دمه توره وه. [۷]د پښتون سوري شېرشاه د هديرې ځای په هند کي.

د پښتون قام مشرانو! تاسي لا راست موږ يو پاته
نن خو ستاسي کارنامې دي چي به زموږ د ژوند اساس وي
که مو دا لاره کړه ټينګه، نو پښتون به ضرور پاس وي

## تبريک او خاتمه

نسيم الوزي پر مېنه هر طرف ښکلی بهار دئ
په هر لوري ګل کاري ده د قدرت د لاس سينګار دئ
سره ګلونه دي چي خاندي وچ ډګر ګل و ګلزار دئ
د پښتون "ملي جنبش" دئ زموږ "ملي جشن" تيار دئ
ظاهرشاه پښتون په دور ملت ورځ په ورځ لوړېږي
په دې عصر پښتون قوم، ښوري، پاڅي ژوندی کېږي
يوې خوا ته پسرلی دئ زموږ "جشن استقلال" دئ
د پښتو ستوری ځلېږي مخ پر لوري د اقبال دئ
په دې دور پښتون واړه په ښه حال ښه ئې احوال دئ
د "ځلمي شاه" په پالنه وطن هره خوا سنبال دئ
پښتنو ملي اختر د استقلال مو مبارک سه
ښه مو حال ښه استقبال دئ روڼ مآل مو مبارک سه
راسئ ټوله سره غونډ سو په دې ورځ ملي اختر کو
د وطن د کار له پاره مخ پر لوري د هنر کو

علـم زده کـو ، صـنعت زده کـو          الـــــوتني کـــــي وزر کـــــو
د اودل[۱] دوره تــــازه کـــــو          علـم و فــن د ځــان زېـور کــو

گوندي وي چي پر دې خاورو ، بيا يو نوى دوران راسي
غزنوي سطوت تازه سي ، زموږ زور غرور شان راسي

دې بهـــار او دې گلــزار کـــي          مـا انـشاء کـړې څـو سـندري
د زاړه دور قـــــــصې دي          د مېــــــړو پلـــــرو خبـــــري
د خوشحال په ياد مي توى کړې          ســپيني اوښــکي مرغلــري
د ده يــاد مــي بيــا تــازه کــړ          پــــښتنو تــــه نــــزدې ليــــري

لــه دې خــوا نثارومــه ، پــر مرقــد ئــې څــو گلونــه
د پــښتون ښـاغلي پـلاره ، خـداى دي و بخښه پـښتونه

ســتا پــه يــاد مــا څــو بــدلي          پــه "ملـي اختـر" انـشا کـړې
دا يــو څــو د ســوز نغمــې مــي          نـوي سـر پـر پـښتونخوا کـړې
يــاد مــي ســتا تــازه کــى پــلاره          گوندي تـه هـم يـاد ځـما کـړې
بېـغ لــه تــورو خــاورو کانــدې          بيا پښتون پوه په رشتيا کړې

چــي اې قومــه اې پــښتونه! اې نجيــب عزيــز ملتــه
خداى دپـاره سـر کـه پورتـه لـه دې هسي خوب غفلتـه

تمام سو

---

[۱] مطلب ځني ابدالي دئ، چي زموږ په ملي تاريخ کي ښکاره مقام لري.

## د علم وسله

پـه اوس دنیـا کـې ژونـد پـه "قـوت" دئ
"قـوت" دئ څه شـي؟ علـم و صنعت دئ
علـــم وســـله ده، د دفـــع آفـــت دئ
بـــې دې وســلې نـــو ژونــد مــذلت دئ
علـــم ســـاتونکی د هـــر ملـــت دئ*

* طلوع افغان، د لسم کال ٢٤مه گڼه، ١٣١١ش، د سنبلې اوله. د علامه صاحب دغه شعر د (پښتون) په مستعار نامه خپور سوی دي. د علامه صاحب په مستعارو نومونو کي د پښتون پر نامه تر اوسه نه وم پېښ سوی. خو د کابل په عامه کتابخانه کي چي د طلوع افغان د لسو کالو کوم کلکسیون پروت دئ، د دغه کال د پښتون نامه ته د علامه صاحب په خپل قلم عبدالحی حبیبي لیکلی دئ.

## مستغني ته

مستغني اې د وطن عالي اديبه
اې چې لوړ دي کی عنوان د خپلې ژبې
ستا وینا وي دي خوږې لکه شکري
په پښتو کې یې سحبان د خپلې ژبې
پښتانه له تا نه ډېر تشکر کاندي
چې دي ښه کړی بیان د خپلې ژبې
زموږ "طلوع" د پښتنو په ژبه وايي
نن و تا ته امتنان د خپلې ژبې
چې ژوندی او سه زموږ پښتون اديبه
او سې اوسې ثناخوان د خپلې ژبې
چې پسرلی د ښې پښتو جوړوي خدايه
هغه "گل" مه کې خزان د خپلې ژبې *

* طلوع افغان، د لسم کال (۱۳۱۱ش) ۲۸ گڼه. دا شعر د اروابناد عبدالعلي مستغني د هغه شعر په جواب کي ویل سوی دئ، چي هغه مرحوم د "خپله ژبه" تر عنوان لاندي لیکلی وو. یاد شعر لومړی په کابل مجله کي خپور سوی وو، له هغه ځایه علامه حبیبي په طلوع افغان کي چاپ کړی دئ. دې شعر ته عنوان ما (روهيال) وټاکه.

## له ما ده پر ما ده

لـه لېنـدۍ ځخـه د صـياد غـشی ايلـه سـو
پـه هـوا جـګ د يـو زاڼـي پـر سـينه سـو
تـر ځګـر ئـې غـشی وخـوت لـه قـسمته
لـه هـوا نـه دی راکـوز سـو مـخ پـر کـښته
چـي کاتـه ئـې يـو څـه اوسـپنه لرګـي وه
هغـــه غـــشی چـــي د ده فنـــا مرګـــي وه
امـــا وې پکـــښي څـــو بڼـــي د مرغـــانو
پـه ليـدو ئـې اوښـکي راغلـې تـر چـشمانو
چـي هـی هـی زه لـه پـردو نـه څـه ګيلـه کـړم
خپلـو بڼـو د اجـل پـر کـور مېلمـه کـړم
دا لـــه مـــا ده چـــي پـــر مـــا ده څـــه بـــه ژاړم
خود به داسي ځان په سرو وينو کي نغاړم*

---

* طلوع افغان، د لسم کال (۱۳۱۱ش) ۳۰ ګڼه. د (پښتون) په مستعار نامه.

## د استقلال د شهیدانو پیغام

سحرګه خوشبو نسیم ویښ کړم له خوبه
چې راغلی وو له کلي د محبوبه
په شکوه سو دی د دهر له آشوبه
راته ګډ سو په وینا د انسان توبه
او ښکي توی سوې له باڼو پر باړخوګانو
چې راوړی دئ پیغام د شهیدانو

په سرو اوښکو په حزین آواز ګویا سو
پر مرقد د شهیدانو په ژړا سو
راته وایه چې نو دی په څه وینا سو؟
د "شهید پیغام" په څه مضمون پر ما سو
د شهید پیغام وو دا چې اې پښتونه!
لا تر څو یې په غفلت کې سرنګونه!

موږ په وینو د وطن خاوري رنګه کړې
د وطن مخکې په وینو مو اوبه کړې

چې نهال د استقلال ته پکښې شنه کړې
وې روزې او تر حاصله نتیجه کړې
په جهان کې سې سرلوړه "آزاد" اوسې
په نعمت د آزادۍ سره ښاد اوسې

د غلیم برچې ته موږ سینه ورسپر کړه
د زړه وینه مو د دې خاوري زېور کړه
په ککر مو د وطن سمه او غر کړه
تر قربان مو چې رشتیا خپل مال و سر کړه
نه مو پرېښو چې غلیم قدم راتېر کې
د پښتو او پښتونوالي صولت هېر کې

سر مو کښېښو د وطن پر ننګ یارانو
د زمرو په څېر ولاړ وو عزیزانو
په سینو کې مو مردک د غلیمانو
پر اخیر تپش خوندي کړه له اخوانو
د سرحد خاوره په وینو مو ګلرنګ کړه
په دې ختو مو بنا ګلګون خرنګ کړه

څو مو وساته وطن له هر آفته
و مو موندی "استقلال" غوندي نعمته

مـــوږ نـــو ولاړو اې عزيـــز پـــښتون ملتـــه
د وطـــن پـــه خـــاورو ښـــخ ســـو و لـــه همتـــه
لـــه اعمـــاقو څـــه د گـــور تاســـي تـــه گـــورو
چـــي بـــه څنگـــه استـــقلال ســـاتی لـــه نـــورو

استـــقلال پـــه وينـــو زمـــوږ رانيـــول ســـوی
پـــه سپينـــسي د روح مـــو دا ټـــوکر اودلـــی
پـــه فـــدا د ځـــان مـــو دئ لاس تـــه راوړی
د ملـــت پـــه وينـــو دی دئ پرېـــول ســـوی
زمـــوږ نـــوم پـــر يـــادوئ ټينـــگ ئـــې ســـاتيه
او ســـاتئ ئـــې هـــم د ســـر پـــه قربانيـــه

پـــښتانه پـــه عـــشق د مينـــي ځـــان قربـــان کـــي
په سرو وينو لغړي حفظ ناموس د ځان کي
پـــه مړانـــه ســـر بـــازل پـــر ســـپين ميـــدان کـــي
چـــي ساتنه د خپـــل کـــور، نـــاموس، ايمـــان کـــي
مـــوږ نـــو هـــم وو پـــښتانه ځـــان مـــو فـــدا کـــی
تاســـي وروڼـــه در پـــه يـــاد دا شـــهداء کـــئ

منتظـــر پـــه تـــورو خـــاورو کـــي پراتـــه يـــو
شـــپه او ورځ و دې وطـــن تـــه پـــه کاتـــه يـــو

اروېـــدونکي دا پيغــــام پـــه پـــښتانه يـــو
مــوږ خــو ولاړو ســر مــو بـايلو ولــي مـړه يـو
دا وطـــــن، دا خـــــاوره، کلـــــى، خانمــــان
مــوږ درپرېـــښو، د ده لاس ستاســـې گرېــوان

کـــه مـــو دا نـــواميس ښـــه ډول وســـاتله
يـــو لــه بــل مــو د وروړتــوب لاس ورکولــه
لــوړ بــه ســى تــر نــورو خلکــو يــو پــه سـله
او کــه داسـي واســت پــه خــوب د جهــل دلــه
نــو بــه نــوم د پــښتنو ورک لــه جهــان ســي
خداى دي نه کي چي به داسي مړ افغان سي *

دا پيغــــام مــــي لــــه نــــسيمه اروېـــدلى
چـــي شـــهيد د اســـتقلال ورتـــه ويلـــى
پـــه پـــښتو مـــي خپلـــو ورونـــو تـــه ليکلـــى
بيـــا مـــي بـــاد د ســـبا بيرتـــه ورلېږلـــى
چـــي ســـلام او تحيـــت دي وي پـــر تاســـو
پـــښتانه دي مفتخـــر پـــه غيـــرت ستاســـو

* پورته شعر تر دغه ځايه پوري د طلوع افغان د لسم کال (۱۳۱۱ش) په ۲٦ – ۲۷ شماره کي د علامه صاحب په مستعار نامه (پښتون) خپور سوى دئ. لاندي برخه مي د خپلواک غړونه نومي کتاب څخه ورسره يوځاى کړېده (م. روهيال)

شهیدانو د وطن زمونږ قدرمنو !
د وطن په غم ویشتلو ! په غمجنو
او په عشق د استقلال پرتو خوږمنو
ځو مو وینه د پښتو جوش خوري په زړونو
و به نه باسو له لاسه استقلال خپل
په سایه د خپل غازي به سم کو ، حال خپل

څو چي جوش خوري په هر کال د شهید وینه
سور بیرغ ئې په رپ رپ پر مرقد وینه
له هغې خاوري نشئت سور گل کوینه
"پښتانه" خپل تحیت درود لېږینه
پر هغو چي ئې قربان ځان تر وطن کی
او په شور د عشق ئې سر پرې، تپیدن کی

څه ښه وخت د فراغت رارسېدلی
تریخ زحمت اړودوړ راڅخه تللی
پښتونو اله او ښه نوم مو ښه گڼلی
نېک اختر د استقلال مو دئ بللی
په نسبت د آزادۍ دا تبریکونه
مونږ هدیه کړه گوندي هېر کي تېر غمونه

اې پښتونه دا ښې ورځې دي نېک فال سه
مبارک مو ځورلس کاله استقلال سه
په راحت او امنیت دي سر او مال سه
اې ملته خدای دي مل په هر هر کال سه
استقلال دي سه روزي بازو دي کلک سه
ژوندی او سې د اختر مو مبارک سه

اې زموږ د استقلال خاص شهیدانو
رحمتونه دي پر تاسي وي اخوانو
د جنت په نعمت ښاد او سئ نېکانو
زموږ سلام ستاسو علیک غواړو یارانو
دا وصیت که خدای کول زموږ قبول دئ
په پاک نیت او پښتونوا له مو معمول دئ*

---

* خپلواک غړونه، د ببلاببلو شاعرانو شعري مجموعه، د ښاغلو زلمي هیوادمل او زرین انځور گډه ټولونه، ۱۳٦۷ش، کابل، ۳۷ – ٤۰ مخونه.

# اې هلمنده

تـل بهېـږې نـه وچېـږې　　اې ژونـدی بهانـده روده
غاړي غاړي ځګ په خوله کي　　ژونـد دي ټولـه تـګ و پـو ده
تـل ښـوريږې حرکـت کـړې　　تـه ډېـر بـد وړې لـه رکـوده

راسه ستا سره خواله کړم
د غمجمن زړه تشېده کړم

دلتـه ستا پـر دواړو غـاړو　　څـه ښـارونه چـي ودان وه
لمـر سـپوږمۍ پـه زرو کالـه　　دلتـه برېښنده تابـان وه
ستا زامـن وه نومـوړي　　رادمـردان پهلوانـان وه

یو وار وګوره چي څه سوه؟
پـه تـورتم پـه ورکېـده سـوه

داور ولاړی ټولـه وران سـو　　بست دي هم خاوري ايرې سو
د زرنـج کنـډوالې وینم:　　د لوړتیـا مـزی ئې پـرې سـو
سـروان هـم سـو کـوټې کـوټې　　څـه مـاتم دلـې هـورې سـو

البـستي پـه ویـر ککـړ دئ
زرنجـي پـه خـاورو خـړ دئ

راسـه اې بهانـده روده!　　درتـه لـولم افـسانه سـتا
سـتا اوبـه آب حیـات وې　　ټـول زامـن وه مردانـه سـتا

چي د مرګ طوفان پر راغی　　کنډوالـه سـوه کرانـه ستا
نـه څـراغ د تهـذيب بـل سته
نـه رونـا سته نـه مـشعل سته

د زرنـج مـدارس وران سـوه　　علمـاءئـې ټـول خـاموش دي
نـه د بـست دانـشکده سـته　　طلبـه ئـې سـينه پـوش دي
مـدني ښـارونه وران سـول　　لـه عدمـه هـم آغـوش دي
يـو وار وګـوره هلمنـده!
څنګـه تـشه سـتا لمـن ده!

يـو وار بيـا حرکـت وکـړه　　شـاوخوا د ژونـد څپـه کـړه
بيـا ودان کـړه لـوی ښـارونه　　پـرې ايلـه د ژونـد چينـه کـړه
تـش ډکـر دي زرغـون بيا کـړه　　زرنـج بيـا دانـشکده کـړه
خپـل زامـن پـه ژونـد خبر کـړه
زرغـون دا کنـډو کپـر کـړه

ولـي هـسي سوې بې فيـضه؟　　اې هلمنـده ځـان تـه ګـوره
د ژونـدون اوبـه خپـرې کـړه　　غورځـه، پرځـه خانـده ښـوره
زرغونـه کـړه دا دښـتونه　　پرېـږده مـه دا مځکـه تـوره
تـه د ژونـد مـسته چينـه يـې
ولـي نـه ګـورې چي څـه يـې*

۲۰ حمل ۱۳۱۲ش

---

* کندهار مجله، ۱۳۳۹ش، دوولسمه ګڼه، ٦ مخ.

# سپوږمۍ

د آسمان سپینې سپوږمیه! مخ دې روڼ، تندی دې ورین دئ
شاو خوا دې پلوشې ځي په رڼا دې تور بڼ سپین دئ
د ویرجنو خوا له ګرې راسه زړه مې ډېر غمګین دئ

راسه زما ګراني پې مخي!
چې یو دم د زړه خواله کړو
سره کښېنو لاس تر غاړه
خوا په خوا سره پاله کړو

ښکلې پېغلې مه شرمېږه پټ دې ولې تر غره مخ کې؟
ته یې زما د زړه ملګرې تل به نورو پر موږ رخ کې
په کوچنیني هم ته زما وې ما به تا ته تل اخ اخ کې

چه کوچنی وم ما بللې
ته "الا کوکو" سپوږمۍ!
د "آسمان پېغله" دې بولم
اوس پې مخې ګلالۍ

له هیواده لیرې ګرزم زما په زړه پورې ملګرې!

## ۵۲

د وطـن بـل ځـوک خـو نـسته دلتـــه يـــم يـــوازي ليـــري
نـه خـوا ړه يـاران خپلـوان سـته نـــه د دوی خـــوږې خبـــري

يــوه تــه يــې زمــا ملګــرې!
راســـره يـــې لـــه هيـــواده
هـم هـورې يـې هـم دلـې يـې
خـداي دي تـل ولـره ښـاده

چي زه درومـم، تـه هـم درومې چي زه ناست يم، ناسته تـه يي
پـــه ځغـــستا راســـره ځغلـــې چـــي بيـــده يـــم تـــه بيـــده يـــې
وفـــاداره ښـــکلې پېغلـــه تـــه سـپوږمی، کـه پـښتنه يـي؟

ســـتا وفـــا د پـــښتنو ده
د آســـمان پېغلـــې نجلـــۍ!
پـه خـوی ښـکلې پـښتنه يـې
د غـمجـــن مـــين شـــهۍ!*

١٣١٤ش - لاهور

* کابل مجله، د ۱۳۲۰ش کال يوولسمه ګڼه، ۱۰ مخ.

د هند د سفر له یادداښتو څخه:

د پښتو یو نوی راز شعر!

## د کور قاصده – راته ووایه

د کور قاصده
راته ووایه
حال د یارانو
د وطن خپل

و ما پردېس ته
حال راښکاره که
د دلدارانو
د وطن خپل

هغه باغونه
هغه ګلونه
د کهسارانو
د وطن خپل

د کور قاصده
د کور قاصده
راته ووایه
حال د یارانو

په شنو باغو کې
په شنو دښتو کې
د وطن به
نسیم چلېږي

پر لویو غرو بې
توري اوریځې
گرزي د ورځې
بیا به اورېږي

د کور قاصده
د کور قاصده
راته ووایه
حال د یارانو

هلته به اوس
بيا ښه پسرلی وي
ښه به هوا
د گل خندا وي

د مستۍ لوبې
چې مو کولې
هغه به ټوله
بيا مهيا وي

لمر به ځليږي
بلبل چغيږي
غنچې غوړيږي
رڼ به سما وي

د کور قاصده
د کور قاصده
راته ووايه
حال د يارانو

کله هېريږي

زيبا وطنه
زيبا مامنه
ترتا واري سم

ته د پښتونيې
پښتانه ستا دي
مينه دي ډېره
ستا قرباني سم

ته نه هېرېږې
کله هېرېږې
زه به وتا ته
پر سر راهي سم

د کور قاصده
د کور قاصده
راته ووايه
حال د يارانو*

لاهور، شاهدره – ۲۵ د دلو ۱۳۱٤

* طلوع افغان: د ۱۳۱۵ش کال د ثور اتمه، د ثورلسم کال لومړۍ ګڼه: ۱٦ مخ.

## میوند

دلته خوند دئ، دلته رنگ دئ، دلته خاندي سره گلونه
دلته سرې ویني دي ایشي مځکه واړه ده گلگونه
دلته اوري رحمتونه، دلته لوړ د حق بیرغ دئ
دلته خاوره کي پراته دي، زموږ غمي او سره لالونه
دلته نسته بې له ننگه، د پښتو ننداره گوره
دلته ږغ د پښتونوالي نازوي زموږ غوږونه
د حق نور پر دې قبرونو نازلیږي په رحمت
دلته پروت "شهید پښتون" دئ موږ ئې ویاړو په همت

دا مظهر د پښتونوالي، دا میوند بولي وگړي
د غلیم د سر کاسې دي په دې خاورو کي لا لغړي
امتحان وو د مړانې، دا ډگر د حماست وو
د دښتو د همت مزي دلته سوله ټول او مړي
دلته زړونه د زمریو پړکیدله، رپیدله
سوه نري تارونه کې وه غونډ د همت پړي؟
د پښتون توري روښا کړه د میرویس اروا په ښاد سو
د احمد یاد ئې تازه کی چي غلیم پکښي برباد سو

دلتــه تــوري ځلېــدلې، چــې پــښتون ولاړ پــر ننــګ وو
دلتــه ســپين صــداقت خپــور، نــه ريــا نــه زرق و رنــګ وو
پــر پــښتو بانــدي ســر ايــښی پــښتنو وو پــه مړانــه
د خپــل ديــن وطــن لــه پــاره، سربازي، قربــاني، جنــګ وو
هــر يــو نــر وو، هــر يــو لــوړ وو، پښتون کلــه کښته کېــږي
دلته صرف د خدای لــه پــاره ځان ښندنه سر بايلنګ وو
منــدو فخــر پــه ځلمــو کــړ، چــې ئــې دلتــه ســر بــايللی
ځکــه دوی وو پــه ســرو وينــو د غــازي ښــه نــوم ګټلــی

دا چې نن پښتون ژوندی دئ، پر نړۍ نوم ئې يادېږي
دا چــې نــن مــو "خپلــواکي" ده پــښتانه ټول پــه نــازېږي
دا چې اوس په پښتونخوا کې د پښتون پښتو لوړېږي
د نــړۍ پــه شــاوخوا کــې زمــوږ ږغونــه پورتــه کېــږي
لـــه آمـــو تـــر آباســـينده د پـــښتون بيـــرغ رپيـــږي
پـــه پـــښتو او پـــښتونوا له د ځلمـــو زړونـــه ډکېـــږي
دا خـــو ټولـــه برکـــت دئ د شـــهيد د وينـــو وروره
د ايــوب، شېر، حفيظ[1] تــوره، تــل پــه قــدر ورتــه ګــوره
د ميونــد شــهيد پــښتونه، ســتا مړانــه نــه هېرېــږي
څــو پــښتون پــر نــړۍ وينــه، ستا بــه نــوم پــه ښــو يــادېږي

---

[1] سردار محمدايوب خان او شېرمحمد خان هزاره او حفيظ الله خان سلېمانخېل د ميوند مجاهدين.

وايي دا خو زمونږ شهيد دئ، چې ئې سرپر وطن کښېښو
تــل و تــا تــه جنتونــه، لــه څــښتنه غو ښــتل کېــږي
ستا مــزار زمــونږ لــه پــاره، د همــت درس و مکتــب دئ
د مړانــــي نــــارې اروو ، لـــه ميونـــده پورتـــه کېـــږي
دا ميونـد پکـښې پراتــه دي زمــونږ ښــاغلي شــهيدان
تــل د رب رحمــت پــر اوري، مخلــع دي پــه رضــوان*

ميوند، ۱۳۱۵ش

* کابل مجله، ۱۳۲۸ش، يوولسمه گڼه، د وقايې دوهم مخ.

د يوه عربي شعر پښتو ترجمه:

## وخت څنګه تېرېږي؟

چي کوچنيواله مي د خوب په مشغولا تېره کړه
يا مي په ژړا تېره کـــړه
وخت مي ولاړ غــــلی
په ځلمـــيتوب کي مي بيا هـــم ډېره خـــندا وه
ورځ او شـــپه وينا وه
وخت را څــــخه تللی
بيا چي رالوی سومه او مخ پر ښه ځواني سوم
روغ سړی قـــوي سوم
وخت مي و ځغســتلی
چي پر مــلا کړوپ سومه، بـوډا يمه بې واکـه
ارمان د ځوانۍ ژواکه
وخت دئ الـــــوتلی
ژر به د مــــرګ ســـګلۍ راپيښي و بـــه مـــرمه
خـــاورو لـــــه به ځمه
وخت تـــر لاس وتلی *

---

* طلوع افغان، څورلسم کال (۱۳۱۵ش) ۱ ګڼه.

## جواب

د وطــن د ســترگو تــور پــښتون زلميــه
د ميــرويس او احمد شــاه ميــړه لمــسيه
اې پــښتونه د پــښتون زو ګړنديــه
ځــو دې تــوان د علــم و فــن وې زده کــوه يــې
وطــن ســتا د پــښتونوالې زيــارتــه ګــوري
نــه هېرېــږې ځــو يــې روح پــه بــدون ښــوري
پــښتانه او وطــن اړ دي ســتا و زيــارتــه
ورونــه، مــور او خونــدې ګــورې ستا و لارتــه
چــې بــه علــم و هنــر راوړې دې ديــارتــه
اوس بــه کانــدې ډېــره سعيه پــه هــر کــارتــه
چــې ســبا وطــن ودان کــړې پــه پــښتو تــه
پــه ښــې غــوږ واوره "پيــام د پــښتنو" تــه[1]*

---

[1] اخترمحمد کندهاری يو له هغو زده کوونکو څخه وو، چې هغه مهال ئې د ترکيې په انقره کې زده کړې کولې. نوموړي له هغه ځايه طلوع افغان ته يو شعر را استولی دئ، چې علامه حبيبي د (پښتون) په مستعار نامه پورته شعر د هغه په جواب کې ويلی دئ (م. روهيال).

* طلوع افغان، څورلسم کال (۱۳۱٦ش) ۱٦ ګڼه.

## د زړه له کومې

چې ملګري يو د لارې يو تاتوبی يو مو کور
نه به ته د رومې له ما نه نه به زه د رومم بل لور

راسه واوره چې بېغېږم خوندوري ناري لولم
په زړګي دي بلومه د زاړه بڅري اور

ته زما يې زه خو ستا يم بېلتون چرته د رنه کړمه
د پښتون ښکلې زلميه يې زما د سترګو تور

توريالي بابا تر خاورو لاندې پروت دئ راته ګوري
پاڅه مټ کړه اې پښتونه راته جوړ نه سي پېغور

د ويښتوب شپيلۍ چغېږي لاس په لاس راکړه دلبره
نن پر هسې لارې يون دئ چې پرې تلې جوپې د غور

د دنیــا پــه اړودوړ کــي ســوبه چــا وکــړه ځلمیــه
چي ویسا پـه تـوره کانـدي یـا ژونـدون د مـټ پـه زور

د غــښتلو پــه دنیــا کــي د بــې وزلــو وزلــه نــسته
څوک چي زور د لاس یې نه وي د پښو ژر پرېوزي نسکور

د دنیا دود او دستور دئ څوک چي زیار کاږي لوړېږي
دا نـړۍ د زیـار انگـړ دئ پکـښي نـسته سـپین او تـور

پــه زړه شــپېلۍ کــي تــا تــه ږغــوم نــوي ســندري
پــه نغمــو دي تود و مــه د زاړه ربــاب پــه شــور

د دې تار نغمې دي ډېري که ته غوږ کښېږدې و ما ته
دا یو ترنگ ئې خوندور دئ ته ئې واوره پرېږده نور *

---

* طلوع افغان، څورلسم کال (۱۳۱٦ش) ٤٧ گڼه.

# د یووالي ږغ

د پښتو په دود پښتونه
درته لولم څو ورمونه
د څښتن پر پار وګوره
شا وخوا کړه نګاهونه

زه او ته سره یو تن یو
څله بېل وي اندامونه؟
که زه ځان یم ته مي روح یې
که زه روح یم ته ځانونه

ما مه پرې کېږه وروره
پرېکېدني دي مرګونه
زه او ته خواره خپلوان یو
ستا په ژوند به ژوندي یونه

که زه نه یم ته به څه کړې
خوند به څه وي له ژوندونه
راسه لاس د پښتو راکړه
په پښتو به پر مخ ځونه

موږ به داسي ځو چي نور مو
ننداري وکا له یونه
اې زلمو د خولې روی دئ
تښتئ تښتئ له بېلتونه

مخ پر لور د مقصد درومئ
په یووالي اوسي ورونه
د لوړتیا پر لوري یون دئ
د خپلوۍ په ښه دودونه

زه پـــردی نـــه يمـــه وروريـــم　　　يـــو د بـــل يـــو لكـــه زړونـــه
ستا په ژوند ژوندی يم وروره　　　زما په ژوند دي ژوند پښتونه

زه او تـــه يـــو كـــور كهـــول يـــو　　　ســـــره ورونـــــه و پلرونـــــه
تـــه خـــو زمـــا مـــړوچ مړونـــد يـــې　　　پـــــه ښـــــېگڼو پـــــه ويرونـــــه

بې يو والي ژوندون گران دئ
د بيلـــتون لار گـــړنگونه*

قندهار، ۱۷ د حمل ۱۳۱۷

* طلوع افغان، پنځلسم کال (۱۳۱۷ش) ۱۱ گڼه.

## د رحمان بابا په یاد مشاعره

د لوړتیا په دائرو کې جولان وکړه
د وطن پر مځکه لږ څه عمران وکړه
تللی برم د پښتونوالي در په یاد کړه
بیا په یاد ئې څه د اوښکو باران وکړه
خدای دي وژغوره د جهل له تیارو نه
پر وطن لږ څه روڼا د عرفان وکړه
په پستي کې به تر څو اوسې ته وروره
د نهضت په وزر غورځه طیران وکړه
سیالان ولاړه په هوا ګرزي نو ته هم
ارتقا پر کنګرو د آسمان وکړه
وطن حق لري هرګوره پر زامنو
نو په زیار سره پر ده لږ احسان وکړه
پښتونواله د احمد غوندي کړه ټینګه
پر پښتو ژبه احسان د رحمان وکړه
خپل ځان مه بایله پښتونه ته هیڅکله
اعتماد پر خپل همت او پر ځان وکړه

نن ژوندون په قوت کېږي دلته واوره
تل تکیه پر خپل بازو او خپل توان وکړه
په ملي ګېډه سره ښکلی اې پښتونه
بیا نوږغ د ملیت پر جهان وکړه
ته که ته وې نو ژوندون دي بختور دئ
ننداره د پښتنو د لوړ شان وکړه
هر ملت په خپل تاریخ ویاړي نازېږي
ته هم فخر په خوشحال میرویس خان وکړه
د رحمان پر خاورو سرې او ښکي نثار کړه
د حمید، پیرمحمد یاد په فغان وکړه
"حبیبي" وځان ته ګوره ته پښتون یې
د پښتون په څېر حیات هر زمان وکړه*

* طلوع افغان، پنځلسم کال (۱۳۱۷ش) ٤٥ ګڼه.

## راز راز افکار

د زړه درد چې څوک خارج کاندي په درد
تودوي په هر ټټر کې څه وي سرد
له تاوده ږغه اثر لوېږي په زړو کې
پاڅوي بيده کاروان صدا د مرد

مړ ملت د مرگ له خوبه راويښېږي
چې مړونه په رشتيا ورته ږغېږي
د مسيح په دود احيا کاندي مړونه
په آوازيې اولسونه ژوندي کېږي

چې د چا ختمه د عشق په اوبو نم وي
تل ملگری به ئې خوږ، درد و ماتم وي
د مېړو دارو د مينې خوږ وبوله
ځکه خوږ پر دوی د عشق درد و الم وي

زما و تا ته د اميد سترگه ده وروره
ته هم ما ته د الطاف په سترگه گوره
زه او ته خو سره دواړه روح بدن يو
خدای د پاره مه بېلېږه پښتون وروره

د يــــوه چمــــن تـــازه ښــــکلي گـــلان يـــــو
د ژونــــدون و پـــسرلي و تـــــه حيــــران يــــو
لــه يــوې ولــې اوبــه، يــو مــو ژونــدون دئ
زه او تــه خــو هــا خــوا ړه او ســره گــران يــو

ژوند مي ستا لـه سترگي خوښ دئ خوږه گرانه
زمـا او ســتا پرېکړنــه کــورټ نــه ده آســانه
يــو مــو پــلار او يــو مــو کــور يــو مــو ټبــر دئ
راســــه واوره د وروړتـــــوب نــــدا افغانــــــه

د پــښتون فطــرت اوبــه غونــدي روښــان دئ
کـه څـه زر څـاڅکي سي ييـا ئـې سيند روان دئ
کلــــه څـــــاڅکي د اوبـــــو ســـــره بيلېـــــږي
پـر پـښتون بانـدي پـښتون وروړ ځکـه گـران دئ

د بابــــا لــــه قبــــره دا نــــارې راخېــــژي
چـې پـښتونه غورځـه وخـت د رڅخـه تېرېـږي
تــه پــښتون يــې پــلار او مــور دي پــښتانه وه
"هـر پــښتون پـه پــښتونوا لـه پــښتون کېـږي"*

قندهار، ١ حوت ١٣١٧

* طلوع افغان، شپاړسم کال (١٣١٧ش) ٤ گڼه.

## د مېنې مينه

که ګران دئ ګران دئ
خــو وطن ګــران دئ

مينـــه ئـــې کړونـــه ثـــو ژونـــدي يونـــه
دا مـــو مـــسکن دئ دا مـــو وطـــن دئ
زمـــوږ پـــه زړو کـــي زمـــوږ پـــه زړو کـــي
لوړتيا ارمان دئ

دلتـــه زمـــوږ کـــور دئ دا زمـــوږ ګـــور دئ
زمـــوږ پـــه هـــډونو د ښـــو نيکونـــو
دا مځکـــه روغـــه ده بافروغـــــــــه
پـــه لويـــو غـــرو ئـــې پـــه شـــنو ښـــو ئـــې
پښتون ودان دئ

مـست ئـې رودونـه دي ښـــکلي باغونـــه دي
پـــه دې بيـــديا کـــي پـــه شـــنه صـــحرا کـــي
ښـــکلي ځلمـــي ويـــنم دې توريـــالي ويـــنم
ســـاتي وطـــن خپـــل ښـــکلی مـــامن خپـــل
سرئې قربان دئ

دا ښه ځلمی دئ ډېر ننگیالی دئ
خاوره ئې خپله مېنه ئې خپله
وطن د ده دئ د بل چا نه دئ
مور ئې تل وینو د ده په وینو
سور په ښه شان دئ

که وطن رون دئ خو په پښتون دئ
د تاریخ پاڼي شاهدي کاڼي
چې دي ساتلي او خوندي کړي
زما پښتانه دي زما په نامه دي
گران مي تر ځان دئ

که جاریم جاریم تر مېنه جاریم
زه ئې مین یم باندي پټڼ یم
هیواد مي خپل دئ مراد مي خپل دئ
تاریخ ئې زما دئ تور بریخ ئې زما دئ
په ما رونبان دئ

ښکلې هیواده! اوسې آباده!
لکه چې زما وې زما د بابا وې
تل به هم زما یې ژوندی وپایې
په تا ویاړمه تل دي ساتمه*

---

* کابل مجله، لسم کال د ۱۳۱۹ش، اتمه گڼه، ۱٤ مخ.

# د بېړۍ نيکه رېغ

لمر دی راخېژي پر لويو غرونو — وړانګې ځلېږي پر ګړنګونو !
دلته يو رېغ دی راپورته کېږي — بېړۍ نيکه وايي زما زامنو !

سړی چې مرينه خوښېږي په خوا وي — اولس چې مرينه نخښه ئې دا وي
ځان ځني ورک سي پر بل مين سي — "پردی ښېګڼي تل نيمه خوا وي"

ځلمی پښتونه ځان دي خوندي که — د ر پکښې تېنګه د ځان خودي که
ته خو پښتون يې "پښتونخوا" ستاده — د هيواد سيمه په بهبودي که

ځان دي د ځان که ويښ دي اولس که — هيواد ودان که ستونزه او وس که
په پښتونواله پر ځان ويسا کړه — په برم کي قوم خپل يو په لس که

نيکونه ګوري تا ته پښتونه ! — له پښتونوالي نه سې راستونه
ته که ژوندی يې خو په پښتو يې — تا ته نه ښايي پردي چمونه

دا پښتونخوا ده ستا ښکلی کور دی — پراته نيکونه دلته ئې ګور دی
که وران لتاړ وي له تا دا غرونه — اې زويه ! تا ته دا لوی پېغور دی [*]

---

[*] کابل مجله، ۱۳۲۰ ل کال، لومړۍ ګڼه، ۲۱ مخ.

# سد او لېونتوب

## سد

عقــل و ســد زمــوږ ګېڼــه ده		هم پــه سد انسان انسان دئ
بـــې لـــه دې دنيـــا تيـــاره ده		عقــل لمــر، د دې جهــان دئ
چـــې نـــړی تـــل پـــه روڼـــه ده		د ســد ستوری فــروزان دئ

دلته شا و خــوا دي لاري – دي کـــږې وږې تيـــاري
چي د سد ډېوه ئې نه وي – هغه ورک وهي کوکاري

## مينه

سد خو ښه دئ رهنمای وي		ســړی بيـــايي اعـــتلا تـــه
بـې لـه مينـي، کـه تنهـا وي		نـو ئـې وي د تـګ پـښه ماتـه
ارســـطو، ابـــن ســـينا وي		سـد ئـې وي لـه درکـه پاتـه

په تش عقل افلاطون سي – روح ئې نه وي د عـــمل
و ســـد منو ته خـــو، بويه: – لږ څه مينه، عشق، امل

## لېونتوب

مينـــه ډولـــه لېونتـــوب دئ		خدای دي نه کا څوک بې ميني
که څه هم ښه پر سدتوب دئ		کلـه سـد بـې مينـي وينـي؟
سد بې ميني، تش اتوب دئ		لنـــډ وي د ســـړي ســـپيني

لېونتوب دئ لېونتوب دئ – چي د مـــيني په قوت
بشـــر بيا يي اعــــــتلا ته – ورکوي وده، نهضت

پــه جهــان کــي لېــونی دئ　　　لــوی کارونــه چــي کوينــه
دوی لــه سده نــه پــردي دي　　　مينـــي سـد سـينگارونه
لېـــــونی دئ لېـــــونی دئ　　　چــي پــر نويــو لارو ځينــه

لږ څه مينه چي له سده – سره مله سي لېونتوب دئ
دا نو عين پر سد والی – اعــتلا او نباغــلتوب دئ

**لېونی**

زه کــه لــخ او بربنــډ گــرځم　　　خــو د مينــي پــه گــدازيــم
کـــه زه الـــوزم کـــه پـــرځم　　　وريت په اورد سوزو سازيم
کښته پورتـه پکښي غـورځم　　　د پـــتهن پــه دود ســربازيــم

دا دنيا مي جولانگاه ده – پکښي تاخت د نر په څېر کړم
کله الـــــوزم اروا تـــه – کله مځـــــکه په بل پېر کــړم

خلـق وايـي چـي مجنـون دئ　　　زه هوښيار پر سد سړی يم
خو په زړه د عشق تاخون دئ　　　لــه راحـت څخــه پـردی يـم
څـو لـه يـاره مـي بېلتـون دئ　　　نـو بـه خـود، روغ لېـونی يـم

زمـــــــا آرام نـــاآرامي ده – په آرام نه آرام مــــومم
څو چي ښورم، گرځم، ځغلم – هومره زه به آرام مومم*

* کابل مجله، ۱۳۲۰ ل کال، ۸ مه گڼه، ٤ - ٥ مخونه.

# غزل

یــا د چــا زمــا و لــور تــه نظــر نــسته
یــا مــي اوس پــه غلبلــو کــي اثــر نــسته
د بېوزلــو کــور تــه نــه دروځــي پيــاوړي
پـــر لوېـــدلو د غـــښتلو گـــذر نـــسته
پـــر غـــښتلو هـــره ورځ اختـــر، بـــرات وي
د بـــې وزلـــو ښـــادي نـــسته، اختـــر نـــسته
ځان غښتلی که، که ژوندون او حيات غواړې
بـــې لـــه زوره ژونـــدون نـــسته، ظفـــر نـــسته
پـښتون کامـه ! سـوړ جهـان لـه تـا نـه تـود وو
اوس دي ولـي پـه نغـري کـي شـرر نـسته؟
غـوړ دي کـښېږده مـا تـه يـو گـړی زلميـه!
کــه پــښتون وې نــو تــا تــه خطــر نــسته
تــه ژونــدی يــې پــه پــښتو او پــښتونواله
بــې لــه دې دي لــه ژونــدو نــه ثمــر نــسته
د غرو بازيې، ولي پروت يې په ځالۍ کي
ســتا پــرواز او تــپش نــسته، وزر نـــسته

د همت وزر که خلاص کې، فضا ستا ده
یو وار والوزه په دې دي باور نسته؟
ستا پښتون نیکه د توري په زور خان وو
اوس روښا د توري ستا پر تېر نسته
ستا په نور روښان مشرق او هم مغرب وو
اوس دي رڼغ پر باختر نسته، خاور نسته
پر دنیا ستا د همت قصې خپرې دي
منځنۍ ایشیا کي ته یې بل بر نسته
د بري گوهر که غواړې راسه واوره
له "خوشحاله" چي وینا کې ضرر نسته
"که غوټې پسي وهې په لاس به درسي
چا وې دا چي په دریاب کي گوهر نسته"*

* کابل مجله، ۱۳۲۰ ل کال، ۹ گڼه، ٤ مخ.

# د یوه پښتون مرگ*

آه مرگیه نیمه خوا سې　　ته څه ښکلي نیمه خوا کړې
یو گړی چې نه بېلېږي　　مین زړونه ته جلا کړې
مسرت کړې تر پښو لاندې　　خندنۍ خوله په ژړا کړې
لکه تا چې کړو ناښاده
رب دې هسې کړه نامراده

د دوو ورځو ناوکۍ وې　　ته ئې کونډه کړې ظالمه
سترگې توري په رنجو وې　　سرې په اوښکو سې له غمه
سره لاسونه ساندې وايي　　ستا له جوره له ستمه
توري خاوري زلمیتوب کړې
جوړ په برخه لېونتوب کړې

* دا وېرنه د کندهار د مشهور تجار او اجتماعي شخصيت ځوانيمرگ موسی خان په باب ويل سوې ده. مرحوم موسی خان په کندهاري تجارو او اجتماعي شخصيتونو کي د لوی او اوڅار نامه تښتن وو. د دوی اجتماعي خدمتونه او د خپل وطن او خلکو د پرمختگ په لار کي هڅي د زياتي ستايني وړ دي. مرحوم موسی خان په برنده ځواني يعني ٣٤ کلني کي د ١٣٢٢ش کال د جوزا پر شپاړسمه د دوشنبې په ورځ وفات سوی دئ. د مړيني ډېر اوږد خبر ئې په طلوع افغان کي خپور سوی دئ. د مرحوم موسی خان په اړه پر علامه حبيبي سربېره اروانښاد نسيم نوري، اروانښاد محمدشريف جانان، اروانښاد عبدالرؤف مخلص، اروانښاد عبدالنبي عزيزي، اروانښاد علامه رشاد، اروانښاد سيد حسين سيد او اروانښاد صالح محمد عشقي هم مرثيې ويلي دي، چي ټوله په طلوع افغان کي خپرې سوي دي. علامه حبيبي مرحوم دا مرثيه له کابله طلوع افغان ته را استولې او د (پښتون) په مستعار نامه د ١٣٢٢ش کال په پنځمه گڼه کي خپره سوېده (م. روهيال).

ماشـــومان وي نـــازولي پـلار او مـور پـه هوسېږي
وايـي دوی بـه رازلميـان سي پـه وجـود بانـدي نـازېږي
چي وطـن تـه بـه خدمت کـړي پـه دې هيلـه خوشـحالېږي
تـه بې رحمـه بانـدي راسـې
مور لـه غېږي څخه ئې باسې

د زمـرو پـه شـان زلميـان وي تـه ئې کړې تـر خاورو لاندي
پېغلـي تـه کـړې ځـوانيمرګي غـاټوی ګـل غـوړېږي بانـدي
هيڅ يو ځای له تا خلاص نه دئ پـه هر کور کي وايـي ساندي
آه، جـلا سـې بنـد لـه بنـده
چي دي خلاص سو لـه ګزنده

پـر پـښتون بانـدي دي جوړ کـړ بيـا نـاورين او ناتـار ولـي؟
ږغ د ســاندو اورېــده ســي پـه غـم ډوب قنـدهار ولـي؟
مېلـې پاتــه لـه هـر چـا سـوې خـالي دئ شـاله مـار ولـي؟
ځکــه ډک زړه لــه ارمانــه
موسـی خـان ولاړ لـه جهـان

دی بـــډای وو مګــر نــه وو پـــه خـــصلت د بـــډايانو
چي ئې لاس هيڅ نه غځېږي پــه کومــک د بــې وزلانــو
يــا دوی خانــدي يتـيم ژاړي غـم ئـې نـه وي لـه خوارانـو
د غريـب وينـې خـوراک وي
هم په دې ئې ژوند او ژواک وي

موسی خان که څه بډای وو      خو حساس د قوم مین وو
و بې وزلو ته ملاتړ تل      پښتنو په درد درد من وو
راوړه ګټه ئې له نورو      خدمتګار د خپل وطن وو

قندهار چې صنعتي سو
په همت د دې سړي سو

ماشینونه ئې کړه نصب      خلاص ئې کړو له احتیاجه
د پښتون په نوم ئې واخیست      له پردي عالم څخه باجه
د پردیو وړیا ګټې      ولوېدلې له رواجه

چې به موږ اړ وو، و دوی ته
هغه راغله زموږ و کوی ته

دې بېوزلي لخ ئې پټ کړه      غریبان ئې مړوله
مسجدونه چې به وران سوه      بیرته ده ودانوله
طالبان به ئې د علم      په هر وخت کې ښه روزله

زړه ئې ډک وو له زړه سویه
پرې دي نه ښووی مرګیه

اوس دې لوی څښتن نصیب کړي      دې مرحوم ته خپل دیدار
څو چې دا پښتون ژوندی وي      څو ودان وي قندهار
د وړو زړو په زړو کې      به د ده نوم وي یادګار

ده ته غواړو رحمتونه
کورنۍ ته ئې صبرونه

# سپین غر

د آسمان پر څنډو ښکاري — د سپوږمۍ رڼا له لیري
د جګ غره پر څوکو لوېږي — تــه وا لـــوني مرغلـــري
هولته سپیني څوکي برېښي — څــو رڼــاوي دي ملګـــري

یو خو سپیني واوري ځلي
هــــم لمبې د شـفق بلي

راښکاره سپیني سپوږمۍ کړ — مخ له ورایه د دې غرونو
هلـئ راسئ ورتـه ګورئ — سیل کـړئ ننداره کړونو
ښکلی غرئې لا ښایسته کړ — سپوږمۍ کار کړه د ښکلونو

سپیني واوري ویلـــېده کا
که نقـرې دي بهـــېده کا

دا کم ځای دئ او کم غر دئ؟ — چـي ئې محوه ننـداروکړم
دلته څوک اوسي د چا دئ؟ — زه بې هم پـر دوی پېرزو کړم
دا منظـر د کـم جنـت دئ؟ — ننداري به ئې تر څو کړم؟

څـو ژوندی یمـــه دلې یم
د "سپین غره" په ننداري یم

خلک وایي دا سپین غر دئ — زه وام یه دا مـي مامن دئ

پښت پر پښت مو د نیکونو　　هـــدیره ده هـــم وطـــن دئ
لـــوړو څوکـــو بانـــدې ګـــرزو　　دا مـــو کـــور دا مـــو مـــدفن دئ

سپین غر زموږ دئ موږ د ده یو
په لمـــنو کې مېـــــشته یو!

ستا دې وي سپینکیه غـره!　　راتـــه ووایـــه قـــصه ســـتا
خـــورا زوړ راتـــه ښـــکارېږې　　سپین دې ټول د سر وېښته ستا
کلـــه راغلـــې و نـــړۍ تـــه　　هـم لـه کمـه دې راتلـه ستا؟

تل ولاړ یې مـــوږ ته ګـــورې!
مـــو قـــــریې کله ښـــــورې

اې ســـپین ږیـــرې! تـــا لیـــدلي　　زمـــوږ نیکونـــه توریـــالي وه
تـــل ئـــې ژونـــد کـــاوه پـــه ننګـــه　　دې ځنګلو کې شنه زمري وه
درنـــاوي کـــې تـــا تـــه ورتـــه　　هـــم بـــه لـــوړ هـــم بریـــالي وه

ســـتا په یاد هغه داستان دئ؟
که له تا هم هـــېر افـــغان دئ؟

اې ســـپین ږیـــرې راتـــه وایـــه!　　ولـــې لـــوړ وه زمـــوږ نیکونـــه؟
ولـــې زه ذلیـــل یـــم پـــروت یـــم　　د ذلـــــت پـــــه ګـړنګونـــــه
نـــه هغـــه جـــاه او جـــلال ســـته　　نـــه مـــو هغـــه پرتمونـــه

ټـــوله ولاړل که کـــــمال وو
کـــه ثروت وو، کـــه جلال وو

راته وایه سپینه غره! تېر داستان د لوړتیا څه وو؟
که علت وو که معلول وو ټول دي لاندي تر کاته وو
ولي موږ کښتي ته پرځو ولي دی په لووړېده وو؟
راسه زما سره خواله کړه
دا سبب راته ښکاره کړه

"له ما زده کړه اې پښتونه! درته وایم څو خبري
ښې په غوږ کې ټینګې نیسه دي بېشکه مرغلري
لوړ و ځوړ مي ډېر لیدلي تجربې مي ډېري ستري
واوره دا چې ښې نکتې دي
ګټې هم پکښې پرتې دي"

د دنیا حوادث واړه سولوي پاسته جسمونه
زه چې ټینګ یم نو ولاړ یم په زرو تېر شول کلونه
څه چې کړي اسمان دې کړینه زه یم کلک ټینګ مي هډونه
که برېښنا که واوري، ټکي
هیڅ تغیر راته پیښ نه کي

## ژړه پاڼه

چې د منې سپلۍ راغله
تګ مې سو په سیل باغ له
د خندونې ګل سراغ له
نه شین باغ نه ښکلی بڼ وو – نه د ګل پکښې مسکن وو

* * *

بڼ وو ژړ بښه الوتې
نه غاټول وو نه پېروتې
نه بلبلې پر جاروتې
ګل وو مړ سره سنا وه – غوټۍ پېغله نیمه خوا وه

* * *

آبشار هم ویلې ساندي
د بلبل د زړګي مراندي
وې شلېدلي لاندي باندي
نې خوښي نه ئې مسرت وو – ویرژړلی په زحمت وو

* * *

زرغونه پاڼه وه ژړه

د ظالم خزان له کړه
په ګرزونو خره پره
نه ورپاته آب و تاب وو - نې زرغا وه نه شباب وو

* * *

ما ول ښکلي پاڼي څه کړې؟
ولي هسي رژېده کړې؟
له دې ښه ته واته کړې؟
مه ځه ته ښکلې ځلمۍ یې - په ښایست د لمر مخۍ یې

* * *

دې ول ځمه وخت د یون دئ
یو څو ورځي مو بېلتون دئ
سبا بیرته بڼ زرغون دئ
چي بهار راسي دې باغ له - زه به راسم ستا سراغ له

* * *

پسله هر مني سمسور سته
پسله هر ویره سرور سته
چي غم وي د خوښۍ لور سته
پسله هر مني بهار دئ - دا قانون د روزګار دئ

* * *

چي لیدلی چا خزان وي
د بهار به قدردان وي

پـه لوړتیـا کـي بـه د ځـان وي
څو احساس د ذلت نه وي – هلته زيار د رفعت نه وي

***

خپـل خـزان ګـوره بهـار کـړه
بـاغ د ګلـو دي سـينګار کـړه
زده د ژونـد دودونـه لار کـړه
دغـه سِـر د ژوندانـه دئ – دلتـه پـټ رمـز د ده دئ*

کابل، ۱۵ عقرب ۱۳۲۲

---

* کابل مجله، ۱۳۲۲ش ۹ ګڼه.

# پسرلی

بیا له بڼه پورته کېږي بڼه رغونه
ته وا راغله د بلبلو بهیرونه
بڼ زرغون سو، غر زرغون له پسرلي سو
ونو ځان کړ آراسته په پسولونه
دا د غرونو په لمنو کې لالـه دي؟
که پراته دي شهیدان سره کفونه
د غرزو پر کوراتڼ د پېغلو روغ دئ
که د ښکلیو زرکو راغله کتارونه؟
د پسرلي شمال چې زېری د ګل راوړ
پرې سمسور سوله بېدیا، وچ ډګرونه
د ختن کاروان پر دې بیدیا تېرېږي
"که راغلي دي د مشکو کاروانونه"
زلمو جونو توري څوڼې خپرې کړې
که پراته دي، د لونګو درمندونه
دا نڅا د پېغلو جونو پر مرغه ده؟
که کبلی پر سبزه زار وهي ټوپونه؟

څو چي سترګي کار کوي زرغونه ښکاري
غر، بېديا، پټي، غونډۍ او دامانونه
غټول زېړی د نوروز کا و رېدي ته
له خوښيه رېدی سپړي ګرېوانونه
سپين غر ټوله په غټولو سور زرغون سو
هندوکش باندي نيسان کړي نثارونه
په بامي بلخ کي بامي غوړېږي خاندي
په باختر کي د سرو ګلو دي سيلونه
نوبهار دئ د پسرلي جنډۍ لوړېږي
خلک ځي ام البلاد[1] کي کړي جشنونه
پر تخار د پسرلي وږمې چلېږي
مړه ګلان بيا برخه مومي له ژوندونه
پر کابل او ننګرهار چي بهار پو کا
ته وا راغی مسيحا پو کړي دمونه
ارغنداو باندي نثار د شګوفو کا
په نخانخا هلمند کړي غورځنګونه

خړ ترنک چي بهېده کا ته وا لولي
د متي نيکه د ميني ديوانونه[2]

---

[1] ام البلاد: بلخ.

[2] شيخ متي يو د شعر کتاب درلود: "د خدای مينه".

هریرود پر غاړو نن د ګل نڅا ده
که راغلي پرې د غور دي زلمي جونه؟
د ویښتیا ږغونه یا پاڅي له بسته
له غزني اورېدل کېږي ښه ږغونه
پښتونخوا باندي راتلونکی یا دوران دئ
وچ بېدیا بې ښکلي کاندي دا ګلونه
لمر سپوږمۍ ئې هم له هسکه سیل کاندي
پښتني پېغلي چي کاندي اتڼونه
پرې خوني له پاسه کاندي مرغلري
نیسان هسي کا خوښي له دې خوندونه
د پسرلي مناظر هسي دلربا دي
چي په خوند ئې نه مړېږي سترګي زړونه
پسرلی د مېني مینه ډېروینه
هو، و بڼ ته مایل کاندي بلبلونه
د بلبل په څېر هم هر سړی مین وي
پر هیواد مینه کوي، کړي صفتونه
څو پسرلی په هر نوروز راځي هیواد له
څو چي لوړ وي پر نړۍ باندي دا غرونه

څو چي اور د لاله بل د غرو په کور وي
څو چي بل وي د سپوږمۍ، لمر مشالونه

څو چي ستوري پر آسمان برېښي په شپو کي
څو چي شپې ورځي راځي پر هيوادونه
تل تر تل اوسې وطنه، ودان اوسې
تول اوقات دي پسرلي وه په کلونه
د ژوندون بڼ دي سمسور سه پر ما گرانه
مور دي ستا يو، ته دي زموږ يې څو چي يونه
د قدرت لاس دي تل ستا په ښکلېدو وي
تل ودان اوسه په سعی له پښتونه
ستا ژوندون مو دئ ژوندون ته ژوندی اوسې
موږ ژوندون تل ستا په مينه جاروونه
ستا بيرغ دي پر جهان هسک وي وطنه
بڼ دي تل اوسه زرغون په سمسورونه*

* کابل مجله، ۱۳۲۳ش اوله گڼه، ۱۱ مخ.

# د میني کلی

چیرته لیري له ښاره نه غره لمنو ته ساړا وه
شاوخوا توري غونډۍ وې ودانۍ نه وه بېدیا وه
هو لته لیري یو قریه وه هلته مېنه د شها وه

یو څو کوره وه سپېڅلي
د قدرت په لاس وه ښکلي

نه صنعت نه هلته فن وو خو سوچه ساده جمال وو
د قدرت ښکلی مظهر وو هر شی هلته په کمال وو
انسان نه وو ښکلي کړي خو هر څه هلته سنبال وو

یوه ښکلې ننداره وه
هلته جوړه تماشه وه

انسان پاک وو له ریا نه نه دروغ نه زرق وریو وو
د جمال مظاهر ډېر وه پر بد خوی، تتلی دېو وو
نه مېرڅي نه دښمني وه هر سړی بل ته وررورنېو[1] وو

هره پېغله وه ملاله
تر پلو لاندې جماله

---

[1] وررورنېو: برادرخوانده.

چې سهار به لمر ختلی ــــ له خاتیځه ئې خندله
شپه هم توره تیاره نه وه ــــ ښکلیو ستوریو رڼوله
هري لوتې هر پوټې به ــــ مینه مینه لولوله
زړونه ډک وه له اخلاصه
مینه زیاته سمدلاسه

ژوندون خوږ وو خلک خوښ وه ــــ شونډې ډکې له خندا وې
زلمي غور ځېدل په مینه ــــ پېغلې هلته په نڅا وې
دا "د مینې کلی" کور وو ــــ راتلې غوږ له دا وینا وې
"مینه ژوند مینه حیات دئ"
"چې آرزو نه وي ممات دئ"*

حمل ۱۳۲۳ - کابل

---

* کابل مجله، ۱۳۲۳ش، دریمه گڼه، ۸ مخ.

## زړه

مــــا د زړه خاونـــــد لیــــدلی　　　چــي بــې تاجــه سـروري کــا
چــي زړه نــه لــري هــيڅ نــه وي　　　کــه هــر څــوني زړه وري کــا

## څنګه زړه؟

دا د ختـــــو زړه زړه نـــــه دئ　　　زړه هغــه چــي څــه دردمــن وي
مينه، سوی پکښي پراتــه وي　　　لــږد بــل پــه غــم غمجــن وي

## که زړه نه وي؟

دا دنیـــــا پـــــه زړو ودانــــــه　　　زړونــه رپــي، زړونــه غــورځي
کــه زړه نــه وي پــه انــسان کــي　　　تــل بــه کــښتي خــوا تــه پرځــي

## د سړي زړه

د سـړي کــه زړه بــې سـوی سـي　　　ټول ژوندون ئې سي بې خونده
هغــه چــاري مــه تــرې غــواړه　　　چــي ئــې غــواړې لــه دردمنــده

## د جامعې زړه

د ټـــولني زړه هـــم داســـي: که پـه "مينـه" معمـورنـه وي
نـــو د ختـــو کنـــدوګان وي هيڅ ئې ذوق او سرورنـه وي

## د اومو خاورو کندو

د "اومـو خـاورو کنـدو" وي دا متـــل د خوشـــال خـــان دئ
چـې سـوزنـه لـري پـه زړه کـي تـش لاډو او بـوس حيـوان دئ

## د زړه ګېڼه

نـــو ســـړی پـــه زړه ســـړی دئ "سـوز" د زړه ګېڼـه ده ښـکلې
"مينـــه" هـــم ورســـره بويـــه کـه ښـه زړه غـواړې ښـاغلې*

---

* کابل مجله، ۱۳۲۳ش، نهمه ګڼه، ۹ مخ.

## سترګه

د روښـــو خـــاورو مردکـــه      د انسان په مخ کې ښکاري
ســـــــــره اوړي او رااوړي      شـاوخوا کلـی کـور ځـاري

## د زړه سترګه

دغـــه ســـترګه حيـــواني ده      انـــساني ســـترګه ده بلـــه
د کوګـل پـه مـنځ کـې ځلـي      د ډېـــوې پـــه شـــاني بلـــه

## انساني سترګه

چـې لـري انـساني سـترګه:      هغـه وينـې پـه تـورتم کـې
حيـــواني ســـترګه ليـــده کـــا      پـــه ظـاهره کـور و چـم کـې

## د جامعې سترګه

جامعـــــه ده ســـــترګوره      برخـــه مـــومي لـــه ديـــداره
کـــه ئـې ســترګه حيـــواني وه      فـرق بـه نـه کـړي ځـاه او لاره

## وینښه سترګه

جــامعې تــه ســترګه بویــه:		چې تل وینښه وي لیدونکې
ثوک چې یون په پرنا حال کا		وکوهي تـه وي لوېدونکې

## زړه او سترګه

ســترګور تــه زړه هــم بویــه		چې د سوز و ساز ښبنتن سي
چې ئې سترګې وي زړه نه وي		هغـه قـوم پـه ورکېـدن سـي

## د تشو سترګو خاوند

مــا لیــدلي ســترګور دي		خـو ئـې زړونـه وي بې اوره
دوی پـه رڼو سترګو لیـد کـا		زړونــه تــش لــه هــره شــوره

## ماشیني سړی

نــه ئــې غــم د بــل انســان وي		نــه ئــې مینـه نـه سـوځل وي
د ماشــین پــه شــاني ثرخــي		سـړیتوب لـه ده خجـل وي*

* کابل مجله، ۱۳۲۳ش، نهمه ګڼه، ۱۰ مخ.

## خپل اصل ته رجوع

ملت دریاب دئ فرد ئې قطره ده
له دې قطرو نه جوړه دجله ده
قطره چې بېله سي له دریابه
تل ئې دې لوري ته تلوسه ده

د اوبو څاڅکی له بحره بېل سو
فضا ته ولاړی بیرته راګېل سو
بېلتون ئې ولید په غرو رودو کې
نېز سو، هم توی سو، خروښانه سېل سو

چې بیرته راغلی د دریاب مل سو
په سیند کې ګډ سو په سیند کې حل سو
بیا ئې ځای ورکړ په خپله غېږ کې:
"راستون هر شی خو اصل ته خپل سو*"

---

* کابل مجله، ۱۳۲۳ش، لسمه ګڼه، د وقایې دوهم مخ.

## ورکه ډېوه

شــپه وه پاڅېــدم لــه خوبــه پــه تيــاره کــي ورکېــدم زه
شــاوخوا تــه مــي تــورتم وو لکـــــه ړونـــد ټپرېـــدم زه

٭٭٭

چــي رونــا نــه وي تيــاره وي سـړی ورک سـي کـه بينـا وي
سـترګي کـار د سـترګو نـه کـا عقل ورک سي، سد ګمراه وي

٭٭٭

زه وم وينښ عقـل پـر ځـای وو سـترګي هـم وې ربـړيـدونکي
چـي رونـا نـه وه نـو هـيڅ سـوه دغـه ټـول پـه کـار راتلـونکي

٭٭٭

لاس مـي اوږد کـی دلتـه هلتـه څـه مـو نـه موندل تيـاره کـي
ډېـــوه ورکـــه رونـــا نـــه وه سـد او حـس وو ورکېـده کـي

٭٭٭

هـر محيـط چـي بې ډيـوې وي رونـــا نـــه لـــري فـــضا کـــي
کـه هـر څـو خلـک سـالم وي څـه بـه نـه مـو مي پـه دا کـي

٭٭٭

د محـــيط رونـــا لازمـــه: ده، انـــسان لـــه پـــه حيـــات
پـر تيـاره مځکـه ژونـدون دئ يقينـــاً بـــد تـــر ممـــات

٭٭٭

آ، د تـوري شـپې دېـوې مـې          چيـري ورکـه يـې پيـدا سـه
ته چې ورکه سوې زه ورک سوم          راسـه ييـا لـږ پـه ځـلا سـه

* * *

د انـسان ژونـدون بـې تـا دئ          پـه تـور تم تپرېـدني
ييـا ځـلا کـړه ييـا روښـا کـړه          اې د عشق د نور څښتني!*

---

* کابل مجله، ۱۳۲۳ش، يوولسمه گڼه، ۲۲ مخ.

# د پسرلي پيغام

(۱)

بهار بيا زرغون هيواد کړ د غمجنو زړه ئې ښاد کړ

هغه بڼ چي سپيره ډاګ وو په ګلونو ئې آباد کړ

(۲)

بلبل راغی بيرته کورته زرغون باغ د ګلو لورته

بيا د عشق سندري لولي ښور ئې جوړ کړ کښته پورته

(۳)

زه هم ورغلمه باغ له د ژيړي ګلو سراغ له

شاوخوا خندا د ګلو رايحې راتلې دماغ له

(٤)

د بلبلو شورماشور وو بل د عشق په نغري اور وو

ما هم غوږ ورته نيولی شخول ئې هري خوا ته خپور وو

(٥)

هسي اروم له بلبله: وايي: "اې خندانه ګله!

مني ستا قدر څرګند کړ مور آشنا يو، يو له بله

(٦)

چي خزان نه وي بهار څه؟ که سوراړ نه وي ګلزار څه؟

روڼـا هـم پـه تيـاره ښـکاري      که شپه نه وي، نو سهار څه؟

(٧)

غــوړلــه راغلــه دا خبــره      چــي بلبــل وي پــه ســندره
ډېــره ښــه او قيمتــي وه      لکــه روڼــه مرغلــره

(٨)

رشــتيا دا ده چــي خــزان      ســړی کانــدي قــدردان
د بهــار د ښــکلو گلــو!      د گلــشن او د بوســتان

(٩)

ملــت هــم داســي دئ گلــه!      څو زمولتيا حس نه کړي خپله
په ځوړتوب خپل خبر نه سي      نهـضت نـه مـومي هيڅکلـه

(١٠)

څـوک چـي ځـي پـر سـمه لار      پــوه دي ســي پــه دغــه کــار
د "زمولتيا احساس بهار دئ"      دا پيغــام دئ د بهــار*

* کابل مجله، ١٣٢٤ش، اوله گڼه، ١٠ مخ.

## کوچني ته

ښایسته ښکلې کوچنیه  ته چې راغلې دې جهان ته
په حیرت ډوب یې دنیا ته  څنګه ګورې دې آسمان ته؟
راته وایه چې لمر څوک دئ  څنګه پېژنې انسان ته؟
خبر نه یې هیڅ له حاله
څه ښه وخت دئ کوچنیواله

کله ژاړې کله خاندې  کله لوبې کړې خوشحال یې
کله ګل غوندې مسا کړې  ښکارندوی ته د جمال یې
چیرته د رومې ولې خاندې؟  د قدرت ښکلی تمثال یې
راسه زما ښکلې لالیه
د ژوندون تازه پسرلیه

که هر څو خورا کوچنی یې  خو مظهر د لوړ قدرت یې
ته جمیل ښکلی پیدا یې  ښایسته کمکی لعبت یې
پر دې مځکه خو یو ته یې  چې مظهر د خلافت یې
لوی جهان که اوږد روزګار دئ
ستا کوچنی لاس ئې معمار دئ

خدای چې دا جهان پیدا کړ    تا تې وسپاره انسانه!
تر ملکو هم ته لوړېږې    که د ځان سې قدردانه
لمر به هم کله تاریک سي    ستا روښا ده جاودانه
نوراني ښکلی بشري
خو له ځانه ناخبرې*

* کابل مجله، ۱۳۲٤ش، دوهمه گڼه، ۷ مخ.

## ډېرينه ښکلا

**يا : تاج محل**

په تياره توره دنيا کې د عدم په شا وخوا کې
نه انسان وو نه ښکلا وه نه د حسن تماشا وه
نه لاس بر د حسن و فن وو څه چې وو، خو اهرمن وو
پر هر لوري به تورتم وو نه بشر وو، نه آدم وو
نه د ښکليو ننداره وه نه د حسن څه جلوه وه

نغرى سوړ به د جمال وو
پټ د حسن روڼ مشال وو

نا بيره يو روڼا سوه د جميل جلوه پيدا سوه
پر دنيا د ښکلا لمر سو ښکلې سمه، لوړه، غر سو
ستورو ښکلى لوړ آسمان کړ حسن ښکلى ټول جهان کړ
د ښکلا شغلې خپرې سوې کښته پورته ننداري سوې
ښايسته سوه ټول شيونه په خندا ښکلي ګلونه

هر طرف ښکلى بهار سو
حسن خپور پر دې ګلزار سو

د ښکلا روڼا سوه ډېره ځلېدله چارچاپېره

دا جهـان ئــې آرایــش کــړ        هـر یـو شـی ئـې پیـرایش کـړ
د جمـــال ډېـــوه وه بلـــه        هـر څـه دې ښایـسته کولـه
جهـان ټـول ښـکلی زیبـا سـو        جلـوه گـاه د دې ښـکلا سـو

د انسان چې سترګې پرې سوې
"د جمـال پـه ننـداړې سـوې"

پـه کلـو کو ښـښ انـسان کـړ        څـو ودان ئـې دا جهـان کـړ
ډېر حسنونه ئې څرګند کړل        ډېر بې خونده ئې په خوند کړل
لاس ئې هسې حسن ساز سو        پـه لطیف صنعت ممتـاز سـو
چـې ئـې جـوړه یـو بنـا کـړه        پکښې وضـع ده ښـکلا کـړه
حـسن کـشف سـو د ډېـري        چـې پرتـې وې لـرو بـري

هسې وضع پـه ښـه چم سوې
چې یو "حسن مجسم" سوې

ازلـــي حـــسن تابـــان ســو        ښـه مظهـر ئـې دا انـسان سو
پـه "احسن تقـویم" پیـدا سـو        پـه پرتـو کـې د ښـکلا سـو
لاس ئـې وا چـاوه تعمیـر تـه        د جمـال و ښـه تعبیـر تـه
چې بنـا ئـې "تـاج محـل" کـړ        ښـه سنبال ښـه ئـې ځلبـل کـړ
پـه هنـر، صـنعت زیبـا سـو        د جمـــال پـــه تجـــلا ســـو

ډېرینـــه ئـــې بنـــا ســـوه
د انـسان د لاس ښـکلا سـوه

دا تعمیــر نــه دئ جمــال دئ        د ښـــکلا زیبـــا تمثـــال دئ

ډ بــرين جمـــال جلـــوه كـــا　　　عـــالم ټولـــه ښايـــسته كـــا
ټولــه حــسن ټولــه رنــګ دئ　　　ورتــه مــات فــن د فرنــګ دئ
دلتــه عــشق جلــوه ګــري كــا　　　د انــسان لاس ســاحري كــا
د "جهــان" د تعميــر "شــاه" دئ　　　د "ممتــاز" مــخ جلــوه ګــاه دئ

ډ برينـــه نـــاوې خانـــدي
ښايست ځل كا لاندي باندي

دلتـــه ســـترګي اريـــانيږي　　　پــه ديــدن ئــې نــه مړيــږي
د كــوم حــسن جلــوه ګــاه دئ؟　　　چي ښايسته تر مهر و ماه دئ
دا مــدفن د عــشق و فــن دئ　　　د عـــشاقو دا وطـــن دئ
لمر سپوږمۍ ئې سيلاني دي　　　ورتــه ډوب پــه اريــاني دي
چــي دا څــه شــرقي جمــال دئ　　　كه ژوندی ښكلی تمثال دئ؟

"د عـــشاقو هـــديره ده
ځكــه داســي ښايــسته ده"*

---

* كابل مجله، ۱۳۲٤ش، دريمه ګڼه، ۱۲ مخ.

# د سهار ستوری

د آسمان په تور دریاب کې روڼ ګوهر دئ چې ځلېږي
د لیلا د اوربل تیک دئ کې د کور مشعل بلېږي
نه پوهېږمه چې څه دئ؟
نه دئ دا هغه هم نه دئ

په تیاره او توره شپه کې بله سوې ده ډېوه ده
څنګه ښکلې او جلیا ده د آسمان پر رپ پرته ده
روڼوي شپه د ویرژلیو
د غمجنو ویرلړلیو

مین پروت په بېلتانه کې تر سهاره شپه کې تېره
نه ئې خوب نه ئې آرام وي لټ پر لټ اوړي له وېره
نه ډېوه وي نه مشعل وي
"د سهار ستوری" ئې مل وي

زه هم ډوب وم په تور تم کې شپه مې تېره کړه په غم کې
نه مې خوب نه مې راحت وو زړه وو ورک په دې ماتم کې
نه څه نور، نه څه روڼا وه
توره شپه توره بلا وه

د تيـــــارې وزر خپـــــاره وه　　　شـــــپه وه ډېـــره ســــهمجنه
د بــل چـــا بړغ نـــه وو هلتـــه　　　بـــې ناســـازه بـــې ويرجنـــه

زه هم ويښ سترګي مي سرې وې
د زړګـــي ولـــي مـــي پـــرې وې

پـه تـور تـم کـي يـک تنهـا وم　　　بېلتانـــه تـــه پلـــه مـــرور لم
کـــه مـــي ســـترګي پټـــولې　　　د لـــيلا خيـــال ويـــښول لم

هـــسي شـــپه هـــسي عـــذاب وو
زړه پـــه ســـره انګـــار کبـــاب وو

تـــوره دربـــه شـــپه وه تېـــره　　　لمـــن رونـــه د آســـمان ســـوه
"د ســهار ســتوري" ځـلا کـړه　　　شـاوخوا لـړ پـه روښـان ســوه

رانښـــکاره پـــه دې تـــور تـــم ســـو
زمـــا د ســـوي زړه ملهـــم ســـو

اې د لمـــر قاصـــده راســـه!　　　تـــا دئ څـــه پيغـــام راوړی
لـــړ رونهـــا خـــو راخپـــره کـــړه　　　ســـتا ارمـــان کـــا هـــر تنتلـــی

زه هـــم غوا رمـــه لـــه تـــا نـــه
څـــو خبـــري لـــه آشـــنا نـــه

تـــه راغلـــی لـــه رونهـــا يـــې　　　ســـتا پيغـــام د لمـــر وينـــا ده
ارمـــانجن زړګـــي مـــي غـــواړي　　　يـــو خبـــر ســـتا لـــه هيـــواده

زه د تـــوري شـــپې ويـــرجن يـــم
منتظـــر ســـتا د ليـــدن يـــم

راسه اې خوا خوږې ستوريه　　زه خو ستا سره خواله کړم
توره شپه مې تېره کړې　　اوس د لمر خوا ته کاته کړم

ته پېشوا ته مې رهبر سه
د آشنا کوڅې له ورسه

مين وصل له ليلا کړه　　له تورتمه ئې جلا کړه
ستا دي وي د سهار ستوريه　　لږ څه ډېره دا روڼا کړه

چې خوږمن زړګې آرام سي
په ښاديو ښاد، ناکام سي*

* کابل مجله، ۱۳۲٤ش، پنځمه ګڼه، ۱۰ – ۱۱ مخونه.

# تش کالبوت

ډېر پخوا په يوه ښار کې        لوی بودتون وو په ديار کې
پروت يو غټ بت وو هورې        پټ د زرو په ګېڼې
ډېر وګړي به ورتلله        په اسرارو خبرېدله
دغه بت به کړې خبرې        لکه ښې ښې مرغلرې
چا چې کړه به ترې پوښتنه        ښه ځواب به ئې واينه
ډېر وګړي پرې راټول وه        شاوخوا ئې لکه شپول وه
هر سړي به پرې پاشل        سره او سپين په سل او شل
ناپوهان ډېر پر تاوده وه        پر سجدو ورته پراته وه
نابيره بت شوده سو        سخت ناپوه او ساده سو
خوله ئې پوري په ناخوالو        په ناوړو په ناسيالو
کړه، بې دريغه ګډېدی        ډېر ناوړه ږغېدی
خلک ټول اريان دريان سول        له دې بته روګردان سول
ږغېده ئې سوه ناوړه        وه وينا ئې لواړه لوړه
د دې بت سر برالا سو        راز ئې لغ پر شاوخوا سو
منځ ئې ګوګ ظاهر ئې سم وو        تش کالبوت ئې جوړ پر چم وو
يو بمبڼ به تل شادمنه!        ننووت په ده دننه
که به دا بمبڼ هوښيار وو        بت به هم ګډ په اسرار وو

کــــه دننـــه بـــه نـــاپوه وو　　　بـت بـه گـډ پـه بـدو دروه وو
څـوک چــي پوهــه نــه لرینــه　　　نور ئې تش کالبوت شمېرینه
د ده ږغ د بــــل د خـــولې وي　　　تــل رســوا هــورې دلــې وي
که په پیڅه ئې هوښیار سي　　　پـر ښـه لار بې مـد دگار سـي
کـــې نـــاپوه ســـړی ملیـــا وي　　　مخ ئې تور وي تل رسوا وي *

(د کریلف له متلو څخه)

* کابل مجله، ۱۳۲٤ ل ، ٦ مه گڼه ۷ مخ.

# لویه گټه

د بهانده سیند په منځ کي    ما لیدله لویه گټه
ښه پرته په متانت وه    له آفته نه وه پټه
شا وخوا ئې سیل روان وو
ډېر په قهر خروښان وو
وې ځپې د سیل روانې    خړي غورځندي غرانې
پر دې گټې ئې هجوم کړ    بیا به سولې سره ورانې
ټینگ پیکار وو، سخت ئې جنگ وو
پر دې گټه ئې غورځنگ وو
گټه وه ټینگه ولاړه    ښه متینه هم سنگینه
نه ئې تره وه نه ئې بېره    بې پروا له دې ناورینه
ځنگ ئې وو ورکړی سیل ته
غوږ ئې ایښی قال و قیل ته
سېل کولې ډېري غوري    لواړي هم ترخې خبري
غرېدلی خروښان وو    وې حملې ئې لري بري
ځگ په خوله وو پوښېدلی
غورځېدلی خروښېدلی
شېبه وروسته هښمه ولاړه    له جوشه سیند آرام سو

ځو چي ښوربدى ژوندى وو          دا آرام ئې هم انجام سو
په غورځنګ کې ئې حيات وو
وسيله ئې د نجات وو
چي د سيند ځپې سوې کښته          ګټه هسي وه ولاړه
په خندا خندا ئې ووې:          "ژوند په هسي ځاى کي غواړه
دا چي سېل ګډ په غورځنګ وو
زما د ژوند بشپړېدنګ وو
په زرو زرو کلونه          دا مي ځاى دا مي مسکن دئ
که سېل راسي که طوفان سي          زړه مي هر څه نه امن دئ
ځکه دا زما منفعت دئ
استحکام مي د بنيت دئ
په هر کال چي سېل بهاند سي          رېګ او خټې راوړي ما له
زه هم هغه ځانله جذب کم          ګټه اخلم له دې حاله
زما بدن په قوي کېږي
سېل چي هر څوني بهېږي
دى که هر څو هياهو کړي          زه د ژوند توښه تړې مومم
له ځپو مي پروا نه سي          د حيات جوهر ئې شومم
د ژوندون مي ده دا ګټه
يمه کلکه لويه ګټه" *

---

* کابل مجله، ۱۳۲٤ش، اتمه ګڼه، ٦ مخ.

د اناتول فرانس له افکارو څخه:

## د بشر تاریخ

ډېر پخوا په تېر زمان کي مقتدر يو لوی پاچا وو
د خپل ملک پوهان ئې ټول کړل هم لويان د حکماوو
دوی تـې وويل پوهانو
اې د عقل خاوندانو

"هر پاچا ته ضرورت دئ چي خبر په پخوانو وي
د بشر په تاريخ پوه وي بنه واقف له زمانو وي
چي شاهانو څنگه کار کا؟
څه رفتار څه ئې کردار کا؟

تاسي اې پوهانو ما له يو تاريخ د بشر کښل کئ
دا تاريخ به مفصل وي ټول نکات پکښي ليکل کئ
را ښکاره چي تېر احوال کړي
سلطنت به مي سنبال کړي"

پوهان ولاړل له شل کاله چي ئې ليک يو غټ کتاب کړ
پنځه سوه ټوکه ونه مفصل ئې په هر باب کړ
دوو لس اوښه ئې په بار کړه
او تقديم ئې د دربار کړه

پاچـــا وویـــل: "پوهـــانو		دا کتـاب خـو ډېـر طویـل دئ
نیمـی عمـر مـي تېـر سـوی		وخت مي تېر په قال و قیل دئ

چـــي ئـــې لولمـــه تـــر پایـــه
تېـــر بـــه عمـــر وي لـــه ورایـــه

ورسـئ دغـه لـږ کـوچنی کـئ		چـي لوسـتل ئـې وي آسـانه"
پوهـان ولاړل او مـشغول سـول		پـه تلخـيص د کتـاب جانـه

پـــسله شـــلو کـــالو زیـــاره
کتـــاب ســـو دري د اوښ بـــاره

دا کتـــاب دوه ســـوه ټوکـــه		دوی تقـدیم کـړ و پاچـا تــه
څلو ېښت کالـه وه تېـر سـوي		دوی نـــزدې وه و فنـــا تـــه

پاچـــا هـــم ډېـــر معمـــر وو
مـــخ پـــر لـــوري د ســـفر وو

ده وې: "اې پوهـــو لیکوالـــو		زه یم خوښ ستاسي لـه زیـاره
اوږد دئ دا کتـــاب بېحـــده		نـسته وخـت د لوسـت لپـاره

ورسـئ بیـا ئـې لا ښـه لنډ کـئ
اوږد کالی دئ تش ئې گنډ کئ"

دا پـلا بیـا پوهـان روان سـول		پـه شـل کالـه ئـې زحمـت کـړ
پـه لـس ټوکـه ئې تلخیص کـړ		پـه دې لار کـي ئـې همـت کـړ

ټـول زاړه ســوه پــه دې کــار کــي
د شـــپېتو کـــالو پـــه زیـــار کـــي

پر ملا کړو پ غابنونه توی سول وېښته سپين ستر گي تاريکي
دوی حاضر سول و پاچا ته لرزان سر او پښې باريکي

کتاب وور او يو وری وو
ډېر خلص او هم کوچنی وو

پوهان راغلل و دربار ته پاچا پروت د مرگ پر حال وو
ده د مرگ سوگلې وهلې او مشغول په دې مقال وو

"زه خو مرم ځم په سفر
و مې نه لوست دا اثر"

د دې پوهي ډلي سر هم له زړتيا مرگ ته نژدې وو
پر بستر د پاچا غوزار سو د ژوندون مزی ئې پرې وو

د انسان د ژوند داستان
ده کې لنډ په دې بيان:

"درې ځلور توري دي واروئ ښه لنډيز د دې کتاب
زېږو، ربړو او بيا مرونه دا خلص دئ د دې باب

د بشر تاريخ په هول
پاچا واروېدی دا ډول*

* کابل مجله، ۱۳۲٤ش، اوومه گڼه، ۸ مخ.

## د زمانې حيرت

د بشر کاروان رهي دئ، خو منزل دور و دراز دئ
منزل پاته دئ ډېر ليري خوار اخته په حرص و آز دئ
که هر څو مخې له درومي، تر شا پاته وي هغوني
بيا طی کړي لاره طی کړي، په ځالی کي بندي باز دئ
آزانگې له غرونو خېژي، هيڅ دروغ نه دئ بې اثره
دلته هلته انعکاس دئ، په فضا کي يو آواز دئ
د وربښم چينجي په څېر دئ، ځان کړي بند پخپله ځاله
تو ميک ئې تباهي ده، دا هم هغه زهري گاز دئ
زما سترگي به خوږېږي، چي بشر بېچاره وينم
په خپل لاس ئې اوربل کړی، پکښې وريت په سوز و ساز دئ
گورم وينمه تېرېږم، د بشر پر حال ژړېږم
ارسطو تر انشتينه ټوله ځي زه هم هېښېږم*

---

* کابل مجله، ۱۳۲۵ش، ځلرمه گڼه، ۱۵ مخ.

# د زړه ډېوه

تــوره شــپه ده تــور ځنگــل دئ          پکــښي ورک يــم ســرگردانه
نــه څــه ويــنم، نــه پــوهېږم          نــه رونــا ســته، نــه ښــهانه

ځــم خــو نــه پــوهېږم چيــري؟
دا خبــــري رانــــه هېــــري

بــصيرت مــي زايــل ســوی          ړونــد و کــوڼ يمــه بې فکــره
نــه خبــر يمــه، لــه ځانــه          ورک د دې، هغــه، لــه ذکــره

مــه ســې ورک هــسي تيــاره کــي
چــي دي عقــل و حــس کــار نــه کــي

دا چــي گرزمــه بــې فکــره          بــې سنجــشه ښــورېدل دي
دا چــي ژونــد کــوم تيــارو کــي          نــه ژونــدون نــه ســوچ کــول دي

زه يــم مــړ، ځــان ژونــدی بــولم
د ژونـــدون ســـندري بـــولم

پــه دې تــوره تيــاره ورک وم          داســي يږغ راغــی لــه ورايــه:

ځان له بل د "زړه څراغ" کړه        تر څو وير کوې بې ځايه
په روڼائي ځه مقصد له
لار دي مومه عقل و سد له
دا ډېوه ده ډېره روڼه        روڼوي کلی کور واړه
عقل و هوښ سي په روښانه        ښه ځلانده سي په دواړه
دا څراغ بل که په کور کي
د دې مېني په هر لور کي*

* کابل مجله، ۱۳۲۵ش، پنځمه گڼه، ۱٦ مخ.

## د ژوند غوښتنه

زمـــانې زخمـــه تېــره کړلـــه د چنـــګ
ږغـــوي نـــوي نغمـــې پـــه نـــوي ترنـــګ

اوربدونکي ئې مستي وجد و شغف کا
کـــه بـــډای کـــه قلنـــدر دئ کـــه ملنـــګ

رنـدان ميـل کانـدي و خپلـو ميخـانو لـه
مـستي نـسته پـه ښيـښه کـي د پرنـګ

سـاقي پاڅـه جـام د ميـو عنايـت کـه
يـاران تـږي هيلـه کانـدي د چـښنګ

د پلـرو لـه خم خـانې ډکـي کاسـې کـه
زاړه مـــی راوړه ترخـــه يـــاقوتي رنـــګ

پـه کلـو کلـو مـو جـام تش او نسکور دئ
تـــرتـــا وګرزمـــه ورســـه پـــه دړدنـــګ

نه به تل فلک یاور وي د رندانو
نه به وي روزگار د مهر و د فرهنګ

نورو مره اورونه بل کړه په نغریو
زما اور مړ دئ نه روښا سته نه ئې سونګ

هغه زړه چي له زاره سوزه خالي وي
تري بهتره وچه پربښه د خرنګ

درد و سوی متاع د مینې د بازار دي
زړه ودان په ارزو او په غوښتنګ

جار تر هغه قلندر ازاد مشربه
چي په تش لاس وي ولاړ پر نام وننګ*

* کابل مجله، ۱۳۲۶ش، شپږمه ګڼه، ۲۰ مخ. دا شعر دوهم وار په ۱۳۳۱ش کال، د قوس پر پنځمه په آزاد افغانستان نومي اخبار کي خپور سوی دئ. هلته ئې عنوان "د زمانې ترنګ" دئ.

# غزل

ساقي پاڅه راوړه ما له جام د ملو
راسه وناڅو په منځ کي د سرو گلو
پسرلی سو هر سړی شور و شغف کا
موږ له نه ښايي چمونه د تتلو
زمانه پر مخ روانه گړندۍ ده
انتظار نه کا زموږ د پاڅېدلو
ياران ولاړ په چمن کي ننداري کا
موږ يو پاته لا په څېر د يخ نيولو
زړه دي سوړ، حيات بې خونده سينه يخه
روح آرزو کړي د کالبوت د تشولو
تر تا وگرزمه زما د زړه آرامه
مه پرېږده مي په تورتم د ويرژړلو
ستا دي وي که به مي هسي په غم وژنې
نسته توان په دې سره اور کي د سوځلو
په يوه پياله دي مړ قوم بيدار که
گوره ځي مخ د گړنگ په پرېوتلو
نه نظام د ژوند معلوم نه ئې مزه سته
نه خبر يم چي څه سِر د ژوند او مړلو

بې نظامه قوم پروت دئ شا وخوا کې
انتظار کا د مسیح د پو کولو

زغ کړه پورته په فضا کې چې ټول" ويښ سئ"
تېر سو وخت د نابينا د لمسولو

د ژوندون خزان به ټوله بيا بهار سي
که ساقي وکړي همت د مې وېشلو *

کوټه، ۸ حوت ۱۳۲٦ش

* کابل مجله، ۱۳۲۷ش، دوهمه ګڼه. دغه غزل د دوهم وار له پاره د ۱۳۳۱ش کال د قوس پر پنځمه په (آزاد افغانستان) نومي اخبار کي خپره سوې ده، هلته ئې عنوان "زمانه موږ ته انتظار نه کوي" دئ (م. روهيال).

## تور سکور

له ما مه تښته که پوه یې زه راغلی له رڼا یم
مخ مې تور بدن مې تور دئ خو باطن کې ډېر صفا یم
سر تر پایه سره لمبه یم
زما داستان واوره چې څه یم؟
زه سور اور ومه سوځونکی سراپا آتش نهاد یم
اوس مې مه ګوره چې سوړ یم زه د اور پښت و نژاد یم
زړه کې پټ مشال لرمه
توره شپه رڼا کومه
که له اوره سره کښېنم ژر به زه بیا لکه اور سم
دا تور مخ به مې تک سور سي و تیارې ته به پېغور سم
زړه مې ډک له سرو لمبو دئ
منتظر د رڼېدو دئ
چې مې ټول بدن رڼا کا یو بخری اور کافي دئ

کوم دئ اور چې مې په ځان سي　　　　دا تور مخ مې راصفا کا

مستعد د ځلا زه یم

له لوی سره اورزاده یم

راسه اې د اور بخرې!　　　　کښېنه زما سره چې اور سم

زوړ داستان مې بیا تازه سي　　　　له هم جنسو سره وروړ سم

لا تر څو به هسې تور یم؟

پرورش غواړمه اوریم! *

* کابل مجله، ۱۳۲۷ش، ۳ – ٤ گڼه، ۳٦ مخ.

## غزل

د زړه درد مې نه ځايېږي کوز و پاس
قلندر ره راولاړ سه راکه لاس

ياران ولاړه د ګلشن و ننداروته
زه پامالـه کړم په سود کي د غم آس

د زړه درد مې ښه متاع د سرلوړی ده
مه کړه که مې اغوستی تور کرباس

يو ګړی راسره کښېنه اې همدرده
زه د زړه خاوند ګڼمه خيرالناس

شين ګلشن مې زمول سو وګوره عالمه
ده چې لاس ته کی تېره د جور داس

ما ته نه ګورې په تورو سترګو ولې
رقيبانو سره ګرزې لاس په لاس

تظاهر بېل، حقيقت بېل دئ که ګورې
پر چاغښت نه حسابېږي تش اماس

په دنيا کې کار په ټينګه اراده سي
تذبذب او بېره اچوي وسواس

ځان درويش که په ګودړۍ کې پاچهي ده
لوړېده نه په کالو نه په مواس

د زړه درد به پټ ساتمه له وګړيه
نه چې بد تعبير ئې وکاندي خناس*

چمن، ۱ حوت ۱۳۲٦

* کابل مجله، ۱۳۲۷ش، پنځمه ګڼه، ۱٦ مخ. دا غزله دوهم ځل په ۱۳۳۱ش کال په (آزاد افغانستان) نومي اخبار کي خپره سوه. هلته ئې عنوان دئ: "راکه لاس" (م. روهيال).

# د رنځور زګېروی

یو وار خدای د پاره زمونږ پر لور ګذر که
د دردمنو زړو له حاله ځان خبر که

د بسمل په دود پراته دي سوځي پرځي
لږ ملهم د دې ویرژلیو د پرهر که

کښتۍ ماته طوفاني او به بهېږي
اې ماڼو! و دې غرق سوي ته لاس ور که

رنځور پروت د مرګ سوګلۍ وهینه مرینه
زما طبیبه! یو نظر پر مختصر که

د عشق اور په زړه کې مري نغری سړېږي
راسه بیا روښان د تللي اور اخګر که

زما او ستا ژوند دئ ترلې سره ګوره
ځان له پاره زما احوال لږ څه بهتر که

کـه زه نـه یـم ستا د مـخ دئ سـیلانی څـوک؟
مـا د خپـل ګلـشن پـتې خـونین جګـر کـه

بـزم تـود کـه! اې سـاقي وخـت د نـشاط دئ
یـو وار ښـکلی مـخ محفـل کـي جلـوه ګـر کـه

زه خـو ستا ومـه، ستا یمـه، ستا بـه یمـه
کلـه تـه پـر خپـل لیـوال د ښـو نظـر کـه! *

* کابل مجله، د ۱۳۲۷ش کال ۱۵مه ګڼه، ۱۳ مخ.

## غزل

زړه پـر سـر د دې کهـسار کـوي پـرواز
گلـستان کـې پيـدا نـه کـړ اهـل راز
بلبـل والـوتی پـه وروئـې وويلـه:
بانېـه نـه سـي کـړای ښـکارونه د شـهباز
پـه نگـاه ئـې زړونـه وکـښه لـه کوگلـه
هـيڅ حاجـت نسته چـي مکـر کـړي غمـاز
اومـه کلـه گډېـدای د عـشق پـه اور سـي
پاخـه بويـه چـي وي ورړ د سـوز و سـاز
سـهار راسـه د وطـن خـوږه نـسيمه
چـي زړگـي در سـره وکـا رازونيـاز
پـه ژړا ژړا گرېـوان پـه اوښـو سـور سـو
څـه حاجـت دئ د بـل رنـگ او د پـرداز
پرېشان کاکـل دي يـا زړگـی پرېـشان کـړ
دا آزاد مرغـه پابنـده سـو څـه راز؟
ږغـوم بـه تـل شـپېلۍ لـه درد و سـوزه
هـو! د زړه او ر سـړوي صـوت حجـاز*

---

* کابل مجله، د ۱۳۲۷ش کال ۲۰مه گڼه، ۱۳ مخ.

## تمنا

کشکي زما د زړه له درده ته خبر وای
لطف و مهر دي مرهم زما د پرهر وای
درته کړلای مي د عشق خوږې خبري
نه رقیب وای، نه رویبار نه غمزه گر وای
زما و ستا تر منځ ئې جوړ کړه فسادونه
کشکي دا مقصد رقیب خاوري پر سر وای
دهري شپې مي په سرو اوښکو دي ژړلي
کشکي آه د نیمي شپې له څه اثر وای
هیڅ ارمان به مي په زړه نه وای که مړ وای
خو که ته ولاړ پر سر د محتضر وای
که تا مینه څه له ما سره پاللای
زه به تل ولاړ په مینه ستا پرور وای
زه به ولي هسي خوار ذلیل رسوا وای
که پر لاري مي خواخوږی څوک رهبر وای
"حبیبي" به تل اسرار د عشق ویلای
د نکاتو اروېدونکی که دلبر وای*

---

* کابل مجله، ۱۳۲۸ش، اوومه گڼه، ۱۹ مخ.

د ښاغلي الفت جواب:

## ستا گناه

حق ويل مشکل دي حق ويونکی په دار سوی دئ
يا ئې غاښ وتلی يا په گټو سنگسار سوی دئ

يا ناست د همزنگ کي چي ئې بل ته حق ويلی دئ
يا تللی خارج ته له وطنه فرار سوی دئ

ته يې نه بندي نه ئې له ملکه څخه کړې بېرون
هر يو اشنا ستا په دې سزا گرفتار سوی دئ

دا لويه گناه چي د مظلومو په حق ژاړې څوک
واوره هر ظالم له دې ژړا نه په ډار سوی دئ

څوک چي جگوي پرده تر ې لاندي ښه او بد گوري
زه وايم صادق دئ د انعام سزاوار سوی دئ

ټول خلگ ورته ښه وايي په ښه نوم ئې ستايي مدام
بې له خودغرضو چي له دې نه انکار سوی دئ

وايـــي خودغرضـــه چـــي تـــرې دواړه ســـترګي وباســـئ
ولـــي دوی بـــې اذنـــه د دې کـــار طلبګـــار ســـوي دي

کلـه هـر سـړی تـلای سـي پـر خپـل سـر لـه پـردې لانـدي
ځوک چي پر خپل سرځي مخ پـه وړاندي ګذار سوی دئ

نـه غـواړي صـاحب غـرض چـي پـه حـال ئـې پـوه سـي بـل
ځوک چي سي واقف پـه حال خوب نـه وي بيدار سوی دئ

پـــټ شـــيونه مـــه لټـــوه ســـر بـــه دي پکـــښي ولاړ ســـي
چـا چـي ئـې شـوق کـړی پـه غمونـو د وچـار سـوی دئ*

---

* آزاد افغانستان، ۱۳۳۲ش، د سرطان ۲۳مه.

## توبه توبه

د نس خوړ له بېماري توبه توبه
د بد ذاته له یاري توبه توبه

چې په دوه ئې خرڅوي په لس ئې اخلي
له دې شان سوداګرۍ توبه توبه

چې د عمر یار پرېږدي غواړي بل نوی
له دې رنګ وفادارۍ توبه توبه

چې په لمسه د رقیب وژني خپل ورور
له دې هسې ورورګلوۍ توبه توبه

چې سورلي ورته د اس و خره یو ښکاري
له دې هسې سوارکارۍ توبه توبه

چې بې ځایه په لویانو کړي تهمته
له دې قسمه هوښیارۍ توبه توبه

چې ګيدړ وي د بيرون د کور زمرى وي
له دې هسي بهادرۍ توبه توبه

چې وعده کړي د وفا پکښې جفا کړي
له دې رنګه غدارۍ توبه توبه

چې غاصب ئې مال خوري په برندو سترګو
له دې هسې بيدارۍ توبه توبه

چې کړي جوار اميد کړي د غنمو
له دې شان اميدوارۍ توبه توبه

چې شيطان ئې له عمل څخه شرميږي
د عصريت له بدکارۍ توبه توبه*

* آزاد افغانستان، ۱۳۳۲ش، د حوت ۳۰ مه.

## آزاده مرغۍ

یوه ونه مې په باغ کې ولیدله
پاس پر سر ئې یوه ځاله ښکاریدله

پکښې ناسته یو ښایسته ښکلې مرغۍ وه
څه به وایم درته څومره ګلالۍ وه

دا ئې کور که بنګله وه که بورجل وو؟
زه خو وایم د مرغانو تاج محل وو

د مرغۍ واړه بچې پکښې پراته وه
خو مشکل ئې له دې ځالې څخه واته وه

مرغۍ نه پرېښوده خپل بچې هیڅکله
چې پرواز او الوتو څخه وې غافله

ورښودل ئې په هوا کې پروازونه
خپرول او رپول به ئې وزرونه

چې بچې خپل کړي آزاد له دغه قیده
له وزرو خپلو نه سي نا امیده

خپله ولاړ سي په دانه پسې هر لور ته
وګرځي په خپله خوښه کښته پورته

اعتماد ئې په خپل ځانګه او وزر سي
تر پرواز لاندې ئې غرونه بحر و بر سي

هر لور والوزي اختیار او واک ئې خپل وي
هسې نه چې صورت خپل واک ئې د بل وي*

* آزاد افغانستان، ۱۳۳۳ش، د سنبلې ٥مه.

## زلمي ارمانونه

زه د ښکلا په انګازو پسي ځم
په سپين تندي تورو پېکو پسي ځم
د مينتوب ناري سوري مې خوښي
په چاودو زړونو اوسېلو پسي ځم
چا وې چې زړه کړه خپله مېنه هېره؟
چا چې هېر کړی يم هغو پسي ځم
د آشنايۍ په لېونتوب مې قسم
لېونی نه يم چې پردو پسي ځم
د بل پېرزو د بل ښهانه څه کړم؟
ستا په جفا نازو نخرو پسي ځم
لېونۍ مينه سد له سره بيايي
يمه هوښيار خو لېونو پسي ځم
مخ مې ګرځېږي، له حرمه تا ته
هيواده! ستا پاکي ورشو پسي ځم
يمه په يادو دي د ورځې ژوندی
چې شپه سي بيا دي اندېښنو پسي ځم

راځــه چــي ځــو د عــشق نغــری ننگــوو
زړه! زه پـــه بلـــو انگـــازو پـــسي ځـــم
سـترګي دي جـار سـم راتـه ګـوره پـه نـاز
کـه ځـم، خـو سـتا سـترګو کـاتو پـسي ځـم
روڼـــا د مينـــي مـــي د زړه روڼـــايي
کلــه پــه تــورو تيــارو شــپو پــسي ځــم
ســپينو وېـــښتو راکـــی پيغـــام د تلنـــي
زه خـــو زلميـــو ارمـــانو پـــسي ځـــم
نــه ځــم، نــه ځــم، پــر بلــه لاره نــه ځــم
کــه ځمــه، زه خــو پــه پــښتو پــسي ځــم*

پېښور، حمل ۱۳۳٤ش

* "د پښتو د پخواني او اوسني ادب منتخبات"، د ارواښاد استاد بېنوا ناچاپه اثر، دوهمه برخه، ۱۸۱ مخ.

## د بهیر سالار ته

د قافلې سالاره! پاڅه وخت د تلو راغی
غوږ که، له لیري نه جرس په شرنګېدو راغی
تر څو به وخت له لاسه باسو په دې تشه وینا
شپه سوه سحر، وخت د کارو د پاڅېدو راغی
د خدای د پاره قام راټول که د وحدت پر څلي
چې لوی افغانه! اوس دي وار د ټولېدو راغی
وهل، رټل، او پرزول نه ده د وخت تقاضا
زمان د مینې او د خوښې او پېرزو راغی
زړونه په لاس کې که! چاړه نه کړي اثر د مینې
پرېکړه ښه نه ده، اوس نوبت د رغېدو راغی
ودانه ځاله کړه ښه لو، د بصیرت په رڼا
شهبازه! بیا چې دي وزر پر غوړېدو راغی
ولاړ سه! پاڅه چې د زړونو قافلې کړو ویښې
ګوره مشتاق زړه په غورځنګ په رپېدو راغی
که دي په زړه کې دئ ارمان د هغه تللي عظمت
نو راکه لاس! چې وخت ئې بیرته د راتلو راغی

کــه زه او تــه ســره یــو نــه ســو ، نــو یــو والی چرتــه؟
پـه دې بېلتـون خـو ، عظـیم قـام پـر ورکېـدو راغـی
بـلا دي واخلمـه سـالاره! کـه دي غـوږ وي شـنوا
زړه مــي لــه درده دې غــزل کــي پــه نــارو راغــی
اوښـکي، آهـونـه، اوسـېلي، کوکـاري زمـا ووینـه
که دي داستان د لوی پښتون پـه یادېدو راغـی *

پېښور، می ۱۹۵۳م

---

* "د پښتو د پخواني او اوسني ادب منتخبات"، د استاد بېنوا ناچاپه اثر، دوهمه برخه، ۱۸۲ مخ.

## خپل زړه ته

زړه راځه چې سره مله سو ځه تپیږې یک تنها ته؟
زه تنها یمه مل غواړم بوزه ما و پښتونخوا ته

راځه ځو به جګو غرو ته د نسیم به خواله ګر سو
له "تیراهه" به ورتیر سو سیلاني به د سپین غر سو

راکه لاس چه سره ځو به مخ کې اوږد او ګران سفر دئ
د پردیسو مل سې خدایه! دا سفر نه دئ سقر دئ!

زړه راځه چې ځو روان سو د لیلی و ښکلي ښار ته
ته ځې؟ ما درسره بوزه! د ییتهن نیکه مزار ته

ته خو ښه یې زړه! چې تلی سې زه محروم یم له وطنه
بلبل پروت یم په قفس کې ورک له باغه له چمنه

زړه ورځه! خو یو سه او ښکې ملغلرې ارمغان زما
ښایي دا چې یاد به کړینه زما دوستان پردې ښنبان زما

زړه ورځـه اللّـه دي مـل سـه! د وطـن زيـارت لـه ورسـه!
زمـا سـجدې نيازونـه يوسـه جبـين سـا پـه هغـه ورسـه

که زه تـلای نـه سمه تـه ځـه! تنـدی ږده د ليلـی درتـه
زمـا اوښـکي، د زړه وينـې کړه تحفه د يـار محضرتـه!*

## پسرلی

کـه خـزان نـه وي بهـار څـه؟
کـه سـوراړ نـه وي ګلـزار څـه؟
رونـا هـم پـه تيـاره ښـکاري
که شپه نه وي نو سهار څه؟**

* لار مجله، پېښور ۱۹۵۷ لومړي کال ۳ ګڼه.
** طلوع افغان، ١٣٣٦ش، اوله ګڼه.

# طوفان

که اوره اوره! بارانه اوره!
د زړه لمبې مې لږ څه سړې که!
څڅواکې څاڅي، خړې اوریځې، په غړمبا ژاړي،
برېښناوي پاس پاس، پر آسمانونو
په پړک پړک خاندي، تنا غړمبېږي

***

په څاڅکي څاڅکي، جوړ سي رودونه
بهېږي، ژاړي، نارې سورې کا
دا آبشارونه ډک ډک سیندونه
تلاښ کا ځغلي، چرته روان دي؟
ځي پر کوم لوري دا طوفانونه؟

***

چیري روان یې؟ لویه طوفانه!
دا کشش څه دئ؟ دا خرام څه دئ؟
د سیند په تل کي، ستا آرامګاه وي

ځې هلته؟ هو، هو! هلته به لوی سیند
تا په خپل غېږ کي، هوسا خوندي کا
ګوره، دا وصل، دا ګډون څوني؟
د خوند زانګو ده، د میني بام دئ

***

که پروت يې، کښېنه! که ناست يې پا څه!
ولاړ يې؟ ژر سه! ژر راروان سه!
نری واله يې! کوچنۍ چينه يې!
څاڅکي دي ټول که! يو لوی طوفان سه!
شيګي، ډبري، د ښتو غر واړه!
په تخرک کي ټوله، سره ونغاړه*

کراچی، ۲۵ اگست ۱۹٦۱م

---

* "د پښتو د پخواني او اوسني ادب منتخبات"، د استاد بېنوا ناچاپه اثر، دوهمه برخه، ۱۸۳ مخ.

## د زړه سره

راسه زړګیه ما ته وایه د پښتو خبري
د پښتانه د تېر تاریخ او د ژوندون وینا
د لوی لودي او د غلجي، سوري، ګډون وینا
د لوی پښتون د عظمت بیا د بیلتون وینا
راسه چي کښېنو سره
د چا په یاد داسي زړګیه! تا پرېشان وینم
په څه کړاو دي هسي شاني ځلبلان وینم
دا ستا له منځه د سرو وینو رود روان وینم
څه ده در پېښه – زړګیه هېښه
راته و وایه لږ څه – له درده سوزه وینا
زړه راته خپور کړ، له درده د خپل ګروم داستان
د پښتانه د تېر عظمت جلال او نوم داستان
د پښین، بنو، د پېښور او د سدوم داستان
ده ویل: اټک چیري ولاړ؟
خوشحال خټک چیري ولاړ؟
بولان، کوږک چیري ولاړ؟
زما، نه هېرېږي د مابڼ او د سوات سیمي

د اباسین، د شال، د ژوب او د کوهاټ سیمي
هغه د تورو د بریښناوو او د باټ سیمي
څنگه به هېر کړم زه
د هغو غرونو ښکلا
دا پېښور، دا تیرا
ټوټې ټوټې کړ زماني عظیم هیواد د پښتون
لږ نه دئ پاته هغه بزم چي مو درلودی پرون
اباسین ژاړي پر دې حال باندي په څنگه تا خون
زموږ پر ذلت ژاړي
پر تېر عظمت ژاړي
څنگه په ورتې ژاړي؟
سپین پښتانه هلته په څنگه سوځند اور سوځي
د ناپاکانو په ظلمو کي خور او ورور سوځي
بیا مي زړگی د غلیمانو په پېغور سوځي
آسمانه کړې به جفا؟
څوني تر کومه پر ما؟
اروې که نه دا وینا؟
لاس که مي بر سي، کړم به تا آسمانه دړي وړي
وینم له تا نه په کلو کلو جفا ناوړې
تر څو به اروم د غلیم خبري بړي بړي
زه به ذلیل نه یم تل

وخت به مې راسي يو بل
لاس به مې بر سي يو ځل
زه به پښتون ته پر دنيا يو ښکلی کور جوړ کړم
ييا به خپل باغ په ښو گلونو ښه سمسور جوړ کرم
د لوي پښتون په لوي نامه به لوی انځور جوړ کړم
د خپل ورورو ه سره
به سمه غاړه غړی
د محبت په کړی
ييا به نو وايمه دنيا ته چي زه سيال يمه
د حق مرستيال يمه
زه مينه پال يمه
کړمه به جوړه يوه ښکلې د پښتون دنيا
وي به روښانه د پوهني د وړانگو په رڼا
سي به زانگو د انسانتوب دغه سپيره پښتونخوا
د پوهي روغي سيمه
د برم او جوړي سيمه
د پښتونوالي د لوړتيا د عظمت زانگو
د لوړ همت، د عالي فکر، د نهضت زانگو
د انسانتوب، د فضيلت، د محبت زانگو *

---

* کندهار مجله، ۱۳۴۱ ش کال، ۷ – ۸ گڼه، ۱۵ مخ.

## د عشق پور

ما ته مه وایه چې دا څه شر و شور دئ
انډیواله! په زړګي کې مې سور اور دئ
ناوکې پر سپین تندي راخپور او ربل کې
که د ورځې زړه د شپې په راتلو تور دئ؟
زه په زړه ساده د درد ناري وهمه
غماز خوشې لګولی د غاو تور دئ
که ته بولې یا شړې مې، باک مې نسته
له ازله مې پر غاړه د عشق پور دئ
مینې هسې زړه راسپین کی چې ئې ګورم
زما د سر دښمن مې هم د سترګو تور دئ
راته نه ګوري، بانې کا هسې داسې:
تېره کړې ئې پر لوټه باندې لور دئ
د زړه درد وو، چې مې دا غزل انشا کړ
کنه مینه او داستان خو ئې لا نور دئ*

کابل، ۱۰ حمل، ۱۳۵۰

* آریانا مجله، د ۱۳۵۰ش کال دوهمه ګڼه، ۹٤ مخ.

## مين

په فتوا د دردمندانو به تل پړ وي
که مین نه د غربت په خاورو خړ وي

د لیلا د کوڅې خاوري وي، خو بل ځای
په همت او صلابت تر هر چا لوړ وي

د بداي قصر به نه ویني په سترګو
که دی ناست په ډېر کوچني واړه انګړ وي

د لوړې سېلاب به بیا پکښې بهېږي
که هر څو اوبو خوړلی لکه خوړ وي

د شرف پر لار به درومي په مړانه
که ئې سر ځي یا پر دغي لاري مړ وي

ځان به نه بایلي ولاړ به پر همت وي
که هر څو د ظالمانو پر برېړ وي

بندگي د نس ئې وي هسي پرې ايښې
ورته يو که څه سپاره او که څه غوړوي

په سپين زړه به سر ښندي د عشق لپاره
د غماز له خوا که څه په تور ککړوي

درويش غوندي په گودړۍ به سرداري کا
سر د ده به تاج د فقر لره وړوي

که خوبان ئې هر څو وشړي له بزمه
تل به دی اخته د دوی د عشق په کړوي

که خاورين انسان بې ځايه په هر ځای کي
سرلوړی کوي هغوني به دی ځوړوي*

کابل، ۱ حمل ۱۳۵۰

* آريانا مجله، د ۱۳۵۰ش کال، څلرمه گڼه، ۸۹ مخ.

## د شعر هنگامه

چې زاهد په میو لړ شوندې لنده کړه
په تیندکو کې ئې جوړه عربده کړه
تنده نه سوله په ماته د رندانو
په ایندو، ایندو ئې تشه میکده کړه
ساقي نه وو هسې مست او غرق په میو
دا رندي او مې نوشي ئې له ما زده کړه
خلک وایي د پردې تر شا اسرار دي
څه خو نه وه چې ئې پورته دا پرده کړه
سیل د اوښو ئې له سترګو را ایله سو
شرمنده ئې هم آمو هم نربده کړه
پس له ډېره مې دا ښکلي شعر ووې
هنګامه د ساړه شعر مې توده کړه

## سید ته خطاب

تـه بـه پـر مځکـه او سپـدلې
خـو نظـر دي پـر آسـمان وو
ستا پـه خيال کي رفعت وو
ستا نظر کي کهکشان وو
ډوب پـه مينـه د وطـن وې
پـه نظر کي دي افغـان وو*

* د زيري فوق العاده ګڼه، د ۱۳۵۵ کب،۱۲ مخ. دې شعر ته په اصل کي استاد الفت ليکل سوی دئ، خو د زېري د هغه وخت چلوونکی محترم زلمی هيوادمل ليکي: "مرحوم پوهاند عبدالحي حبيبي، علامه سيد جمال الدين افغاني ته يو نظم ويلی دئ، خو دا نظم د ۱۳۵۵ کال د زېري جريدې په لومړۍ ګڼه ضميمه کي د استاد الفت په نامه چاپ شوی دئ. استاد حبيبي خپله ما ته د دې انتساب د عدم صحت په باب ويلي وو" (د ماسټرۍ د دورې د متونو نوټ).

## سید جمال الدین افغان

شرق مې وینښ کې د وحدت په لوړ آواز
هند، ایران له استانبوله تر حجاز
له کونړه پاڅېدم جهان مې ونیو
لڅ مې کې د اسلامي یووالي راز
څوک چې لوړ مقصد لري هغه لوړېږي
په غټ صید پسې لوړ ځي د غرونو باز
زړونه تور، عقلونه تور، سترګي ړندې وې
ما ښکاره کړله سِرونه راز په راز
څوک چې درد او سوز د زړه لري سړی دئ
د بې دردو سر خو نه ارزي په غاز
زما د عشق او د شرقي خلکو دردونه
افسانه سوه د محمود او د ایاز
پس له مرګه مې لیدني لره راسه
چې درزده کړم د دردمنو سوز و ساز*

---

* زېری، د ۱۳۵۵ش کال ٤۹ مه ګڼه.

## سره وبا

چې ګډه په وطن سوه سره وبا کلي په کلي
د خدای مسلمانانئې کړل تبا کلي په کلي

مرګو ده را بللې، دې ددانو مرتدانو
سره کړه نامرادیو د مرګ خوا کلي په کلي
اجل دئ چې راوزي له توپو، له مشین ګڼو
ځوانۍ دي رژولي دې بلا کلي په کلي
سپېره کړل بمباریو ودان کلي، شنه کښتونه
ټانکونو بورجلونه کړل بېدیا کلي په کلي
بمونه شپه او ورځ اوري د روس له جهازونو
سرې وینې دي بهاندي شا و خوا کلي په کلي
ځنګلونه د دې پاکو غرو طعمه سوه د ناپالمو
وریتېږي په دې اور کې پښتونخوا کلي په کلي

صرفه نه پر ورو، نه پر زړو سته، نه پر ښځو
کشتار دئ، قتل عام دئ برملا کلي په کلي

پراته دي ګام پر ګام د شهيدانو په سرو وينو
لو ګډ د ژوندانه دئ نن سبا کلي په کلي

د غوښو په خوراک ئې ځناور رسېدای نه سي
هوا سوه له لاښونو څه خوسا کلي په کلي
وطن سو سره بتۍ پکښي نښتي دي د سرونو
ځوانان د پښتنو سوه نيمه خوا کلي په کلي
سرونه سول بې بيي، ژوندونونه بې ارزښته
اوس ويني د سرو سولې وړيا کلي په کلي
سپکتيا وهل کوټل، بند و زندان، ژوبلي مرګونه
نصيب د خان، بډای، شيخ و ملا کلي په کلي
واړه يتيم يسير، مېرمني کونډې، بوري، وراري
کمبلي دي هواري، د پاتا کلي په کلي
ښراوي دي، ژړاوي دي، چيغاري دي، کوکاري
سرې ساندي دي د بورو هره خوا کلي په کلي
تاړاک د چنګيزيانو مو اوس هېر سو، چي رالوېږي
دا ټکي د خلقيانو له تنا کلي په کلي

په سيله به سلا او په وسلو ئې وژل کېږو
پر روس مو ځکه پور ده خون بها کلي په کلي

مـوږ هـم آخـر بـشريـو ، د كـريملين صـوبه دارانـو !
پـر څـه مـو پـه خپـل ملـک كـي كـړو تبـا كلـي پـه كلي

د زوي زړه مو تر خوله سه موږ مو تپ په سره وبا كړو
پــه خپــل وطــن مــو گــډه ســه وبــا كلــي پــه كلــي
كاڼــه [ټــول] مــدعيان دي، د بــشر د حــق غوښــتلو
هـيڅ نـه اروي، دا زمـوږ د غـم غوغـا كلـي پـه كلـي

اې لويـه قـدير خدايـه! دغـه خواست مـو تـه قبـول كـړې
خلقيــان د دې وطــن كــړې پــو پنــا كلــي پــه كلــي*

* د درد دل و پيام عصر د مقدمې "ک" مخ.

## د استقلال د شهیدانو پر هدیره

## د نیکه گانو جرگه

(۱)

یوه ورځ د خوږ وطن په فکر و خیال وم
گاه د تېر عصر په یاد، گه د حال وم
د زاړه عظمت په فکر کې خوشحال وم

تاریخي شوکت مې ټوله یاداوه
د میرویس تدبیر او فکر مې ستایه
د محمود فاتح تاریخ به مې وایه

(۲)

چې ښکاره راته د تېر دور منظر سو
د وطن پر تېر شوکت به مې نظر سو
پر دا اوس حالت چې زما بیرته گذر سو

د وطن گران استقلال مي په ياد راغی
له دې ياده مي ناښاده زړه ښاد راغی
خراب فکر مي ودان سو آباد راغی

(۳)

په دې ضمن را په ياد هغه ځوانان سوه
چي په عشق کي د وطن خپل شهيدان سوه
تر خپل دين او خپلي مېني ښه قربان سوه

د غليم په مقابل کې سينه سپر کړه
په سرو وينو ئې رنگين سمه او غر کړه
خپله مېنه ئې خوندي له لوی خطر کړه

(٤)

نو رهي سومه د دوی مزار و خوا ته
چي پر اړخ دي پراته نوي کلا ته
بوی د مشکو ئې نشرېږي و فضا ته

قبرستان خو نه دئ دا يو لاله زار دئ
په سرو وينو د شهيد نقش و نگار دئ
د وطن د ننگياليو دا مزار دئ

(۵)

دا مـزار نـه دئ هـر قبـر ئـې باغچـه ده
لـه جنتـه ورتـه خلاصـه دربچـه ده
دلتـه پروتـه د ملـت د بـاغ غنچـه ده

چـې غـوړېږي تـول گلـشن خنـدانوي
د وطـن د شـپې افـق روښـانوي
د مـين خـوږمنی زړه شـادانوي

(٦)

قبرسـتان نـه دئ خوبگـاه ده د زمريـانو
دا مجمـع د پـښتنو د ښـو ځلميـانو
آرامگـاه ده دا د هغـو شـهيدانو

چـې ئـې ځـان کـی قربـاني تـر وطـن خپـل
پـه سرو وينـو ئـې اوبـه کـی گلـشن خپـل
پـه دې خاورو کـې ئې جوړ کـی مدفن خپـل

(۷)

هـديره خـو نـه ده ښـه يـوه ډېـره ده
شـهيدانو ننگيـالانو مرکـه ده
دلتـه جـوړه د نيکونـو لـو جرگـه ده

غزنوي، غوري، میرویس و احمد شاه
هم محمود زمري اشرف سره همراه
هم اکبر غازي، ایوب او نادر شاه

(۸)

را حاضر سوه ټول تېر سوي نیکه گان
پر مرقد د شهیدانو دي شادمان
مچوی پر سرا و سترگو خپل ځلمیان

چي ئې ننگه کړه پر ځای د پښتونوالي
وخاته پر قول او گای د پښتونوالي
په رښتیا سوله فدای د پښتونوالي

(۹)

زمونږ غوري فاتح و دوی ته تحسین وکی
میرویس خان دوی ته شاباس آفرین وکی
احمد شاه پر غلیمانو نفرین وکی

اکبرخان ول په رښتیا زمونږ زامن یاست
ایوب خان ول د وطن ځلمي خونږمن یاست
سید جمال ول د مشرق زمري در د من یاست

(۱۰)

آفـرین دي وي پـر تاسـو زمـوږ زامنـو
چـي مـو وسـاته وطـن پـه خپلـو وینـو
"اسـتقلال" مـو کـی حاصـل اې غیرتمنـو !

شـهیدان سو اسـت پـه سـاتنه د وطـن
تـر آخـر مـو کـړه پالنـه د وطـن
ځـان مـو بـایلو پـه روزنـه د وطـن

(۱۱)

راسـئ اوس نـو پـه نعمـت د ذوالجـلال
زړونـه ښـاد کـړئ د رجـو کـي د کمـال
جنتونـه سـته نعمـت دئ د وصـال

ټولـه ستاسـي دي خـالق انعـام درکـړی
خپـل نعمـت ئې دئ و تاسـي تـه عـام کـړی
مکافـات د قربـانۍ دئ تاسـي وړی

(۱۲)

تاسـي ولاړ اسـت شـهیدانو ننګیـالو
د وطـن پـر ننـګ مـو سـر کښېښو زمـرو
د تیـرې تـوري پـه زور مـو توریـالو

وګټلــــی اســـــتقلال غونــــدي نعمـــــت
پــــه ژونـــدی مـــو کـــی زمـــوږ نـــوم و عـــزت
وي پـــر تاســـي دي د خـــدای عظـــیم رحمـــت

(۱۳)

اوس مـــو وســـپاره وطـــن و پـــښتنو تـــه
د وطـــن د اوســـني نـــسل ځلمـــو تـــه
ګـــورو دوی بـــه د وطـــن و ښـــو ســـاتو تـــه

څـــه خـــدمت کـــوي او څـــه بـــه قربـــاني کـــړي
چونکـــه دوی دعـــوا د ننـــګ افغـــاني کـــړي
ګوندي ځان په دې مجمر کي سپېلني کړي

(۱٤)

پــــــښتنو، اې پـــــښتنو، اې افغانــــــانو !
اې ژونــــدو زمــــوږ زامنــــو ننګيــــالانو
د نیکونـــــــو دا وینـــــــا د شــــــــهیدانو

پــــه ښـــی غـــوږ واوره د دې عـــصر اولاده
د نجیـــــب پـــــښتون ځلمیـــــه او نــــژاده
پا څـــــه کانـــــده د وطـــــن خونـــــه آبـــــاده

(۱۵)

نیکه ګان په تورو خاورو انتظار دي
په لوړ بړغ ناره کوونکي په کوکار دي
امیدواره ستا د فکر ستا د کار دي

چې به لوړ کاندي وطن په لوی همت
و به ساتي د نیکونو تېر عظمت
ښه به کاندي د عزیز وطن خدمت

(۱٦)

بې زحمته اوس وطن نه ساتل کېږي
بې غیرته قوم ژر ژر محوه کېږي
محوه کېږي و مقصد ته نه رسېږي

ولاړېږه د پښتون ځلمیه زویه
د وطن په ودانې زمریه زویه
نیکه ګان دي منتظر لالیه زویه

(۱۷)

په رښتیا که ته د دې وطن زمری یې
په رښتیا د پښتنې زوی ګړندی یې
د میرویس د احمد شاه بابا لمسی یې

لور به کاندې نوم نښان د نیکه گانو
چې نیکه نه سي خجل په کړو سیانو
غیرتمنو د پښتون نیکه لمسیانو

(۱۸)

دا وطن مو د دارینو کور و گور دئ
د اسلام عزیز وطن او ستاسي کور دئ
که ئې نه ساتی نو شرم او پیغور دئ

استقلال به د وطن ساتئ هر کله
دا خپل کور به له دښمن ساتئ هر کله
بیا بې ښه په ځان او تن ساتئ هر کله

(۱۹)

د وطن د شهیدانو دا وینا ده
د ښاغلو نیکه گانو واویلا ده
دا د دوی ښه نصیحت نه دئ طلا ده

که مو وساتلی لور به پر جهان سو
او د عصر له فتنو به په امان سو
له سیالانو سره سم به پر میدان سو *

* خپلواک غړونه، د بېلابېلو شاعرانو شعري مجموعه، ۱۳٦۷ش، کابل، ۲۹ – ۳٦ مخونه.

## د آزادۍ د شهید وینې

ما ته په وینو د شهید کې آزادۍ خندلي
ځکه چې وار ه مال و سرئې پر میدان بایللي

چا چې د خپل مرگ فیصله کړه د وطن لپاره
د زړه په وینو مؤرخ د دوی قصې لیکلي

زکوة د وینو د شهید د قوم ژوندون گڼمه
ما ډېر قومونه په ایثار باندي آزاد لیدلي

چې د وطن له پاره چا د همت ملا تړلې
هغه ځوانان بهادران به وو جنت ته تللي

میدان د حشر کې به وي ولاړ په لوړه غاړه
هغه ملي شهیدان ټول په وینو سره لړلي

شهیدان ټول آواز د "یا لیت قومي" کوي نن
ولې چې دوی د شهداوو مراتب لیدلي

شهید له قبره څه آواز راځي دا وايي راته
بغیر له وینو تویولو چا حقوق ګټلي

کښېنه ولاړ سه خدمتونه د وطن دي کوه
ولي دي سترګي د عبرت پښتونه تا ګنډلي *

* خپلواک غږونه، د بېلابېلو شاعرانو شعري مجموعه، د ښاغلو زلمي هیوادمل او زرین انځور ګډه ټولونه، ۱۳٦۷ش، کابل، ٤۱ مخ.

# پیغام شهید

**تقدیم:**

بحضور پادشاه جوانبخت افغانستان،

اعلیحضرت محـمدظاهرشاه افغان

## بخوانندهٔ پیغام

پور خاور ! زادهٔ این آب و خاک
با تو گویم پندهای مرد پاک

"نادر" غازی شه عالی نژاد
مام مشرق همچو او مردی نزاد

نکته ها از تربتش اندوختم
درسهای پربها آموختم

بشنو از من پند و "پیغام شهید"
با تو دارد گفتگوها ، ای سعید !

## آغاز

نو بهار آمد گذشت افسردگی
فصل گل شد موسم فرخندگی

در چمن گلهای زیبا خنده زن
شور نوا فگند بلبل در چمن

شاهد گل جلوه گر در بوستان
نوبهار افروخت چهر دلبران

تا گل خاک سیه آمد پدید
در گلستان شور محشر آفرید

یکطرف از سینهٔ کوه و کمر
شد فروزان لالهٔ خونین جگر

کاشت آتش در دل صحرا بهار
شعله زن شد لالهٔ حمرا چو نار

ای خوشا سیر نگارستان باغ
دارد از نزهتگهٔ مینو سراغ

اندر ایامیکه موج گل چنین
میفزاید رونق این گلزمین

ساقیا ! جامی ز آب ناب ده
مردگان را فطرت سیماب ده

تا فروزم شعلهٔ مجد کهن
آتشی اندر ایاغ ما فگن!

## سیر کابل و تشرف بمزار

## اعلیحضرت شهید نورالله مرقده

در بهاران موسم شور و جنون — شوق سیر گلشنم آمد فزون
بهر سیر گل سوی گلشن شدم — مدتی در خاک غزنی آمدم
بعد سیر گلشن محمود راد — بر زمین کابلم ره او فتاد
کابل آن شهریکه گرد خاک او — بوده مردان جهان را آبرو
کابل آن شهریکه خارش همچو تیغ — پاره سازد قلب دشمن بی دریغ
از نسیمش روی افغان تازه تر — اژدهایش خفته در کوه و کمر
مردزا و شیر پرور دامنش — رادخیز و پر هنر پیرامنش
شیر دل اکبر[1] از بن که نره شیر — همچو جان[3] پرورده بس مرد دلیر
لوړ حصارش[2] مخزن آمال ما — مرکز اجداد و نسل حال ما
جان ما اندر طواف کوی او — در تلاش قبلهٔ ابروی او
بیدلان را سیر باغش آرزوست — راه آنکو میرسد تا کوی دوست
اندرین شهریکه قلب آسیاست — گرد خاکش چشم ما را توتیاست

---

(۱) غازي وزیر اکبر خان
(۲) بالا حصار
(۳) غازي محمد جان خان وردگ

خفته دیدم راد مردان گزین — نامور مردان پاک "صالحین"
از "شهیدان" غیور (نامور) — از رجال نامئی و الا گهر
دیدم آن فیضی که دل را تاب داد — آتشی، تابی، فروزی، آب داد
بر مرنجان تپهٔ بالا بلند : — اشک وخونی برده ام بی چون و چند
بر مزار "شاه نادر" ریختم — شعلهٔ از درد دل انگیختم
دیدم آن شاه شهیدان را خموش — لحظهٔ رفت از سرم این عقل و هوش
اشک گلگونی نثارش کرده ام — من فقیرم برگ سبزی تحفه ام
بحراند و هم ربود از خود چنین — کی خبر دارد زخود اندوهگین
لحظهٔ بر مرقد "شاه شهید" — آن شهٔ نیکو سیر مرد سعید
ریختم اشکی ز حسرتهای دل — ترجمان سوزش و هاهای دل
گفتم ای مرد غیور نامور! — فاتح تل، مصلح ما دادگر!
ایکه دادی ملت خود را نجات — از لهیب انقلاب (آن برد و مات)
رونق کشور زتو ای شاه راد! — "اوستادان جهان را اوستاد"
ملت از تو نامور شد در جهان — ای رخت رونق فروز گلستان
سازو برگ ما زسعیت شد بجا — حق ببخشاید ترا ای شاه ما!
رفتی اما در دل خورد و بزرگ — ماندهٔ تو یادگار بس سترگ
چون تو آزادی به ما بخشیدهٔ! — "گر فزون گردد تواش افزودهٔ"

ما ترا از دل فراموش کي کنیم؟
چون توئی اندر دل ملت مقیم!

"شاه نادر" غازی راه جهاد — مصلح ملت، شهٔ نیکو نهاد

